# څرک

پنځلسم کال، درېیمه، پرلپسې ۱۰۴مه ګڼه،
حوت۱۳۹۶ل، جمادی الثاني۱۴۳۹هـ ق، مارچ۲۰۱۸م



## دملېشو جوړول

دامریکایانو زړه اوسولیدلي حربه ده !!

- رسانه ها مزدور آئینه ما نیستند
- افغانســتان باز هم شامل فاسد ترین کشورها

# افغانســتان

د (۲۰۱۸) میلادي کال د فبروري په میاشت کې

- د بازار، کلینیک او ښوونځي ګناه څه ده؟
- د «کابل پروسې» ناسته؛یو حقیقت او زر دروغ!
- لویدیځه غوطه کې ستر وحشت
- افغانستان به د سورېې له برخلیکه څوک ژغوري ؟!



داشـغال ترچتر لاندې، دملي اردو، ملي پولیسو او اربکیانو حکم

## زمـوږ پـر مېـنو

دواشـنګـټن د ګـټو جـګړه!

د طالب جان خط




پنځلسم کال، دریمه، پرلپسې ۱۰٤مه ګڼه، حوت۱۳۹٦ل،
جمادی الثانی۱٤۳۹هـ ق، فبروری ۲۰۱۸م

امتیاز :

دا مـتیازخـاونـد : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

مسـؤل مدیــر : عبـید تنـویر

لـیکوال پـلاوی : ډاکټر صا بر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

ګډون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۸۰ افغا نی |
| پا کستان : | ۲٤۰ کلداري |
| ا مریکا : | ٦۰ ډا لـــره |
| ا رو پـــا : | ٦۰ یـــو رو |
| یــوه ګــڼــه : | ۱۵ افغـــانی<br>۲۵ کلـداري |

یادونه

حـتمي نـه ده چې پــه څـرك كـې خـپرې شـوې مقالې داداري دپـالـیسي ترجماني وكړي هـره لیكنه دلـیكوال خـپل نـظـر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه

پتې :



srak_111@yahoo.com


علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپـــرونه

## لړلیک

## سرمقاله

بسم الله الرحمن الرحیم

# دملېشو جوړول

## د امریکایانو زړه او سولیدلي حربه ده !!

دکابل مزدوررژیم وايي دخپلوخارجي بادارانو په موافقه یې دمحلي ملیشودجوړولو په یوې نوي داسې طرحې کارپیل کړی چې له مخې به یې ٣٦ زریزمحلي ملیشي جوړي اودهیوادپه بیلابیلوبرخوکې به ځای پرځای کړل شي .

امریکایانواودکابل حلقه بگوش رژیم لس کاله وړاندې هم دهیوادپه گنوسیموکې یوشمیرداړه ماروډلو اوگروپونوته اجازه ورکړي وه چې په کلیواوبانډوکې وسله واخلي اودولس دازارولواولوټولوپه خاطر لویو لاروته راووځي ؛ خوداسلامي امارت ویښواوبیداروماجاهدینودامریکایانودملیشه سازي هاغه پروژه کلکه ماته اوټولي جرړي اوریښي یې له بیخه راوویستي.

اوس ښکاري بیاامریکایان دداعش دناولي اولړلي پروژي دپراخولواوخورلوترڅنگ په لته کې دي ترڅودملیشو او اربکیانو جوړولوزړه اوسولیدلي حربه یووار بیاراژوندی اودافغان ولس دخورولواوکړولو په برخه کې ترینه کاراواخلي

که داسې نه وي نوبیادڅلورلکه اجیري اردواوپولیسوپه شتون کې دمحلي ملیشواواربکیانوجوړول یادامعنالري چې ملي اردو نوره سمه بگیله اوله پښولویدلي ده اونورنشي کولای چې دمجاهدینوپه مقابل جگړه اومقاومت وکړي اویاهم امریکایان اودکابل مفسداوناترسه واکمن غواړي دبې سره اوبې ښکره ملیشواواربکیانوپه بیااحیاسره عام افغان ولس په دې جرم چې ولې دامریکایانود غلامی طوق په غاړه کې نه اچوي دانتقام اوغچ نښه وگرځوي ، دیني ارزښتونه یې وځپي ،ملي شتمنی یې لوټ کړي او خدای مکړه دعزت اوابروجنازه یې اوچته کړي !!

دکابل گوډاگی رژیم حالت اوسرنوشت هرچاته معلوم دی چې دیوه ولایت والي اوامنیه قوماندان له دندي نشي لیري کولای والیان اوقومندانان یې په جهردبغاوت اوسرکشي اعلانونه اوگواښونه کوي ولې رژیم یې په وړاندې دهیڅ کولو اوهیڅ ویلو ځواک اوهمت نلري ، نودغه ٣٦ زره نوي اربکیان چې دنده یې هسې هم لوټماري اودفسادخورول دي هغوئ به دا څپ څپانده رژیم څنگه کنټرول اومهارکړي؟

ښکاره اوثابته خبره همدغه ده چې امریکایان د نوروصریحووحشتونوترڅنگ غواړي له یوه لوري افغانان دداعش په وحشیانوودړي ترخوایې دکابل مزدوره اداره په دې مکلفه کړي چې دخودسره ملیشواواربکیانوپه جوړولوسره دلیري پرتوسیمو درانه اومتدین افغانان ددوئ په توسط سزااووټکوي

خوامریکایان اودهغوئ اردلیان اواربکیان دي خبروي چې اسلامي امارت په زیاتوسختوشرایطوکې دامریکا اوناټو د یونیم لک مجهز لښکر اودملي اردو اواربکیانود څلورلکه پوځ سره تاریخي مقابله اومعرکه سرته ورسوله اوداسلام دغه ټول غلیمان یې له پښووغورځول ؛ اوس خو دالله تعالی په خاص نصرت اومرحمت اسلامي امارت په ٨٠ سلنه ځمکه کلک تسلط اوواکمني لري ، ولس ورسره په سراومال ولاړدی اوپه نړیوال ډگر کې دیوه پوځي اوسیاسي ځواک په توگه منل شوي لدې ورسته چې هغوئ زمونږ ولس اوپرگني په وحشي ملیشو ډاروي اویافکرکوي چې داسلامي امارت دمجاهدینومورال به په دغو نوو ملیشو بې حوصلي کړي دابه دمکار اوبزدله دښمن دحماقت اوجهل ورستی حداوپوله وي .

اسلامي امارت ددښمن هري حربې اوحرکت ته سخت متوجه دی دخپل ولس له ارزښتونو، حیااوعزت څخه دسرپه بیه دفاع کوي اودټولو امریکایي ملیشه سازیو که هغه دداعش په نامه وي اویاداربکیانو دالله پاک په مرسته به یې مخه نیسي اوبیخکني به یې کوي . ان شاالله تعالی

## د «کابل پروسې» ناسته؛

# یو حقیقت او زر دروغ!

سهیل صالحی

د «کابل پروسې» دویمه ناسته د تېرې اونۍ په وروستیو کې د ۲۵ هېوادونو او دریو نړیوالو سازمانو په ګډون په کابل کې جوړه شوه. په اصطلاح له «تروریزم» سره ګډه مبارزه او په افغانستان کې د سولې ټینګښت د دې ناستې اصلي موخې وې او تر څنګ یې د کابل اداري له طالبانوسره د سولې طرحه نړیوالې ټولنې ته وړاندې کړه.

بېشکه سوله او ارامتیا د دې خاورې د هر وګړي پخوانۍ هیله ده. نږدې څلوېښت کاله کېږي، چې د افغانستان خلک د جګړې او وحشت په اور کې شپې او ورځې تېروي. په څلونو د سولې اجنډا مطرح شوې؛ خو خلک شاهد دي چې وحشت او ناامني تر پخوا لا زیاتېږي.

خو اوسمهال ربنتیا هم د افغانستان دولت د سولې راوړو لپاره خپلو وعدو ته د عمل جامه وراغوستی شي که دا ناستې زیات نمایشي اړخ لري او د عامه اذهانو د فرېب لپاره ګټه ترې اخیستل کېږي؟

په تېرو ۱۷ کلونو کې مو چې څه د افغانستان د دولت په کړنلاره کې ولیدل، هغه دا دي چې دولت په دا ډول صحنو جوړولو هڅه کوي، چې په هېواد کې شته ترخه حقیقتونه پټ کړي او خلکو ته یوه دروغجنه هیله ورکړي او څو سهاره نور خلک د سولې په خواږه نامه وغولوي.

له دې امله د افغانستان د دغو ورځو د ترخو حقیقتونو د پټ ساتلو لپاره دکابل دولت هڅه کوي، چې د سولې په اړه د مختلفو څلور اړخیزو، درې اړخیزو ناستو، سمبولیکو بحثونو او اوس د «کابل پروسې» دویمې ناستې او زرګونه نورو دروغو په وسیله عامه اذهان منحرف کړي، تر څو هغه حقیقتونه چې د خلکو ژوند یې ستونزمن کړی او د زغم له دایرې یې ایستلی، پټ پاتې شي. مګر «یو حقیقت او زر دروغ» هغه درس دی، چې "چرچیل" ورښودلی. د انګلیس پخواني صدراعظم چرچیل به ویل: «د یوه حقیقت د پټ ساتلو لپاره باید زر ډوله دروغ وویل شي. » له دې امله عجیبه نه ده، چې شاګردان یې دا ډول سیاست غوره کړي.

خو هغه حقیقت چې د پټولو لپاره یې هڅې رواني دي، له جګړې، ناامنۍ او بې ثباتۍ پرته بل څه نه دی. هغه حقیقت چې د امریکا د سیمه‌ییزو موخو د ترلاسي لپاره اغېزمنه وسیله ده. نو د امریکا په شتون کې په افغانستان کې جګړه مسلم او نه

بدلېدونکی حقیقت دی. مګر دا حقیقت باید په دروغو او سیاسي دوکو پټ شي، تر څو له یوې خوا خلکو ته دروغجنه هیله پیدا شي او له بلې خوا د «ملي یووالي» شړېدلي او سپڅېدلي حکومت ته یو فرصت وي، تر څو ځان راټول او جوړ کړي او د خپل ځان یو مثبت انځور وړاندې کړي.

کابل دولت چې له داخله سخت ټوټې ټوټې شوی او د هرې ورځې په تېرېدو یې د سیاسي اختلافونو تنور نور هم ګرمېږي او د دولت ستنې یې له پخوا زیاتې لړزېږي؛ په دغه هېواد کې د بهرنیو چارواکو سیاسي بحثونه او ناستې تر ډېره یو تبلیغاتي پیغام ته ورته دي، چې دولت خپل داخلي کوړوالي پټ کړي. په داسې حال کې چې دا ډول ناستې به هېڅکله د سولې د راتګ او د جګړې –چې له پخوا راهیسې د خبري رسنیو لپاره ګرمه سوژه ده– د ختمولو لپاره لار هواره نه کړي.

په پای کې دا ښکاره تضاد دی، چې که په افغانستان کې د امریکا ستراتیژي د جګړې دوام او ناارامي وي او د کابل اداره د سولې وعدې ورکړي. د جګړې په شتون کې سوله ناممکنه او د دغې لپاره هڅې د خلکو غولول او هغوی ته دروغجنې هیلې ورکول دي. د افغانستان خلکو دا ډول ناستې په ځلونو تجربه کړې، چې لوړ لګښتونه پکې کېږي، رسمي او کاري ورځې پکې رخصتېږي او سړکونه د خلکو پر مخ تړل کېږي؛ خو یوې یې هم نتیجه نه درلوده، برعکس د جګړې او نارامۍ شدت تر پخوا لا زیاتېږي.

# درباري فتوا!

د مصر یو ټلویزیون غوښتل چې د ډېرو بچیانو زېږوني د مخنوي په هکله پر یوې موضوع خپرونه جوړه کړي او په دې هکله یې د حج اوقاف له مسؤلینو څخه غوښتنه وکړل چې یو مفتي ورته معرفي ترڅو د شریعت له مخې د موضوع حرمت او عدم حرمت روښانه کړي.

حج اوقافو، الازهر پوهنتون ته لارښوونه وکړل چې یو مفتي ور ولېږي.

د الازهر ادارې یو درباري دین پلورونکی عالم ور معرفي کړ، مفتي چې کله سټوډیو ته راغی له تشریفاتو وروسته د ټلویزیون کارکوونکو ورته وویل: صیب چمتو یاست چې خپرونه پیل کړو؟؟؟

مفتي صیب وویل: لومړی مې په دې پوه کړئ چې د موضوع په هکله (ستاسو د خپروني دریځ څه دی؟) ترڅو زه پوه شم چې څه ډول حکم وکړم (یعني موضوع حرامه وګڼم که جائزه)؟

خبریال ورته وویل: شریعت چې څنګه حکم کوي، هم هغه حکم بیان کړئ.

مفتي ویل: نه تاسو کوم ډول حکم غواړئ؟

ځکه له ما سره (حلت او حرمت) دواړه ډوله فتواوي شته صرف تاسو فرمایش وکړئ زه به هم هغه سي حکم بیان کړم.



# دکابل د سولې وړاندیزونه

# او طالبان...!!

لیکنه: م فرهاد

د کابل د حکومت د کابل پروسي په نوم دويمه غونډه، په داسي حال کې پای ته ورسيده، چې په ترڅ کې يې اشرفغني طالبانو ته د سولي په پار يو لړ وړانديزونه وکړل. که څه هم د غني اعلان دا وو چې بلاقيد و شرط د ده حکومت له طالبانو سره مخامخ خبرو ته تيار دی. مگر ترهرڅه وړاندي يې دا ټکي ذکر کړل چې که طالبان خبرو ته تياريږي نو د خبرو د چوکاټ د رامنځ ته کولو پخاطر به څو کارونه کوي: ۱–طالبان به حکومت په رسميت پيژني، ۲ -ملي ځواکونه به تقويه کوي، ۳ – د ښځو د حقوقو تأمين ته به ژمن اوسي، ٤ -له بهرنيو ډلو سره به اړيکي شکوي او داسي نور....

په مقابل کې به يې حکومت چمتو وي چې طالبان د يو سياسي گوند په حيث په رسميت وپيژني او بلا قيده وشرطه به په کابل، يا بل هيواد او يا د ملگرو ملتونو په دفاترو کې ورسره مذاکره وکړي. پاسپورټونه به ورکړي، او له هغه وروسته به يې پر حقوقي چوکاټ خبرې وشي چې په هغه کې به د بنديانو او تور ليستونو موضوع را وسپړله شي.

د ښاغلي غني دا وړانديز چې دی يې بي قيدوشرطه گڼي؛ د ځينو شنونکو له نظره په عين حال کې په شرطونو سمبال مشروط وړانديز دی، ولي ځيني نور يې بيا دا شروط نه بلکي د مذاکرې د چوکاټ د رامنځ ته کولو لپاره تخنيکې زمينه سازي يادوي.

**--- په هر صورت....**

د اشرف غني د سولي نوي او ډراماتيک انعطاف په داسي حال کې مخي ته راځي چې په مجموعي ډول، د ټرمپ له نوي جگړيزي تگلاري سره د سولي اميدونه ډېر له منځه تللي بريښېدل، په ځانگړي ډول بيا د طالبانو له لوري د کابل له ورو ستيو بريدونو نه وروسته چې د ټرمپ د ټويټر کوم دريځ راڅرگند شو چې له سوليز حل نه يې چورلټ انکار وکړ او په تعقيب يې ارگ هم وويل چې نور نو سوله په جگړه کې غواړي؛ لا پسي- د سولي اړوند نهيلي زياتي شوي.

تر دې وروسته د کابل د حکومت نور حرکات او څرگندوني چې د سولي پرضد بلل کيدل؛ هم دا ښودله چې د کابل چارواکي هيڅکله خپل خير په سوله کې نه محسوسوي.

حنيف اتمر چې د امنيت په برخه کې د غني ښی لاسی يادېږي؛ په سعودي عربستان کې له شرق الأوسط ورځپاني سره په مرکه کې وويل چې دوی له قطر سره د طالبانو د دفتر تړلو پرسر خبري کوي، کيدای شي دا دفتر نور وتړل شي.

تر ده وړاندي د حکومت يو بل سلاکار او د متحد اپوزيسيون مشر پخواني

جنگسالار رسول سیاف هم د سعودي د دورې پرمهال له یادي ورځپاڼې سره وویل چې طالبانو ته په قطر کې دفتر ورکول له افغانستان سره ظلم دی. باید وتړل شي. او پرځای یې یوازې د کابل حکومت ومنل شي.

بل خوا په کابل کې رسنیو د سولې شورا د چارواکو له خولې وویل چې له حکومت سره یې د قطر دفتر د تړلو پرسر موافقه کړې، او په عین حال کې د سولې شورا اعلان وکړ چې په راتلونکو څو اونیو کې به په کابل کې د نړۍ د علماؤ یوه غونډه جوړه کړي ترڅو یوه فتوا ځینې ترلاسه کړي چې په هغه کې به د طالبانو جهادي مقاومت ته د ناروا جګړې نوم ورکول شوی وي.

همدارنګه د رسنیو منفي تبلیغاتو او د حکومتي چارواکو له لوري د سولې اړوند منفي څرګندونو او د ټرمپ ټویټونو ته خوښې څرګندولو دا ښودله چې چارواکي سوله او جوړجاړی هسې په خوله یادوي، په حقیقت کې دوی په هغه جنګ جګړو کې خیرویني چې امریکا یې په څنګ کې ولاړه وي.

دا چې د کابل ګډ حکومت څنګه د سولې په اړه له انعطافه ډک اعلان وکړ؛ فکر کیږي چې سرچینه به یې د طالبانو هغه لیک وي چې د امریکایي ولس او کانګریس په نوم خپور کړی و.

## - - - د طالبانو لیک

د امریکا د عامه ولس، د کانګریس د سوله خوښو سناتورانو او مدني ټولنو په نوم د طالبانو په لیک کې وړاندیز شوی وو چې امریکایي ولس دې خپل حکومت دې ته وهڅوي چې د افغانستان اشغال پای ته ورسوي او که څه اندیښنې لري له طالبانو سره دې په مخامخ تفاهم کې مطرح کړي.

د لیک په وړاندې که څه هم رسمي غبرګون څرګند نشو خو داسې ښکاري چې امریکایي چارواکو دا حقیقت په سنجیدګۍ سره درک کړی وي. چې د افغانستان جګړه نوره دوی ګټلای نشي برعکس په زیان یې ده. د تفاهم لاره به یې دوی ته ډېره ګټوره وي.

خو چونکه نړیوال غرور او حیثیت یې ترپښو لاندې کیږي چې د دوی په نظر له کمزوري سیال (طالب) سره مخامخ خبرو ته چمتو شي. نو یې د خپل تحت الحمایه حکومت له طریقه د کابل پروسې په ترڅ کې د سولې ډراماتیک وړاندیزونه وکړل.

له وړاندیزونو نه ښکاري چې دا ټولې خبرې په حقیقت کې د امریکا طرح ده، چې د اشغال او بهرنیو ځواکونو طرف ته پکې هیڅ اشاره ونشوه، ولې د آساسي قانون تعدیل، د رسمي حیثیت ورکولو، د پاسپورټ ترلاسه کولو، دفتر پرانیستلو، او تور لیست ختمولو او داسې نورو... ټولې خبرې هغه څه دي چې امریکا ته پکې هیڅ تاوان نشته.

یعني په دې طرح سره که طالبان یې ومني؛ نو د امریکا ټول مشکلات به حل شي خو د افغانستان آساسي ستونزه چې د اشغال موجودیت دی؛ به پر خپل ځای پاتې وي.

## - - - د آساسي قانون تعدیل

په امریکا او نوره نړۍ کې آساسي قانون تعدیلول یو خورا ګران کار دی، حکومتونه او سیستمونه له آساسي قانون سره عیاريږي خو قانون نه ورته بدلیږي، چې بدلیږي هغه هم د یوې مادې په جزیاتو کې پارلیماني قوه یا صلاحیت لرونکې اداره تغیر او تبدیل راوستلای شي. اما په افغانستان کې د امریکایانو لپاره دا هیڅ اهمیت نلري. د ډاکټرعبدالله د چوکۍ لپاره هم قانون تعدیلوي، د ګلبدین حکمتیار د پخلا کولو لپاره هم قانون تبدیلوي، د عطانور د لیرې کولو لپاره هم په قانون کې د لاسوهنې اړتیا پیدا کیږي. دا دی اوس د طالبانو د راضي کولو لپاره هم د قانون د تعدیل خبرې کوي.

یعني امریکا ته دا هیڅ ارزښت نلري، چې د هیواد په آساسي قانون دي لوبي وشي که څه هم ستونزي پرې حل کیـدای نشيـ، او اشـغال چـې د مشـکلاتو سرچینـه ده، امریکایان یې په اړه هیڅ چا ته د خولي چوله کولـو اجـازه هم نه ورکوي. ځکه چې هغه د دوی په زیان دی.



## - - - د طالبانو چوپتا

د غني د هغي طرحې په وړانـدي چې د امریکـا پـه استائیتوب یې اعلان کړه؛ طالبانو هیڅ ونه ویل، نه یې رد او نه یې تائید کړه، که څه هم تازه د کابل حکومت د سولي شورا بیان راغلی چې وایی د طالبانو ځواب ته پـه تمه یو.

زه فکر کوم چې طالبان اصلاً دا طرحه د امریکا ګڼي، او امریکا ته طالبانو وار له مخه ویلي دي چې تاسو مستقیماً خبرو ته راشئ او خبري به لـومړی د اشغال پـر سر پیلیږي. نور بعدي مسائل د افغانانو خپـل منځـي کـار دی. چې پـه آسـانه حـل کیدلای شي.

دلته چونکه امریکا له غیر مستقیمي لاري د مذاکراتو په نوم خپل کـار کـوي، او بل دا چې لـه آسـاسي سـتونزي (اشـغال) پرتـه یـې پـر نـورو غیـر ضروري او یـا ضروري خو پر وروستیو ټکو تمرکز کړی دی چې د افغانستان د معضلې د حل پـه موخه نه، بلکي د یرغلګرو د برنامو د کامیابۍ لپاره یوه دسیسه ده.

له همدې ځایه ده چې طالبانو هیڅ اعتناء ورتـه ونکـړه. کـه چیـري د سـتونزي واقعي حل پکي ترسترګو کیدلای؛ هرو مرو به یې طالبانو مثبت استقبال کړی وای.

## - - - پایله

حقیقت دا دی چې پر طالب دا جګړه تپل شـوي، هغـه د خپـل ځـان، خـپلي خاوري او خپل استقلال لپاره په دفاعي جګړه لاس پوري کړی؛ نو طبعي ده چـې د جګړې ختمولو ترټولو زیاته لیوالتیا طالب لري. په واقعي ډول د ستونزي داسي حـل غواړي چې اشغال پای ته ورسي او افغانان پخپلو منځو کې پـه عادلانـه ډول تـر یـو منلي سیستم لاندي ژوند وکړای شي.

او برعکس امریکایانو بیا په افغانسـتان کـې د خپلـو اسـتعماري اهـدافو لپـاره جګړه پیل کړي، د هیواد آزادي یې سلب کړي، وحشت او بربریت یـې رامنځ تـه کړی، پر هغه سربیره د ستونزي پرهیڅ ډول معقول حل باور نلري. دا ځکه چې پـه جګړه کې دم ګړی د ځان ډیـر نقصـان نـه احساسوي ځکه چې دوی فکر کوي چـې د ډالرو په بدل کې یـې افغـان چـارواکي د دوی جګړه پر مخ بیایي.

نـو دلتـه ډیـر مسـئولیت د کابـل حکومت ته راجع کیږي چې ترخپلـو آني شخصيـ ګټـو، چـې بـې واکـه ځـوکي او امریکـایي ډالـر دي؛ تیـر شي، د مـلي، اسلامي او انساني همدردي په آسـاس دې پر اشغالګرو ږغ وکړي چې نور مـو اشـغال پای ته ورسوئ او موږ پریږدئ چـې خپـل مسائل پخپلـه سره حـل کـړو. کـه پـه ډکـه خولـه ځـواب ورکـولای نشيـ؛ لـږ ترلـږه همکـاري خـو دې ورسره پریـږدي. کـه چیـري دا کـار وکـړي او د امریکـایي یرغلګـرو دا د کرایـې زمینـي جنګـي قـوه ختمه شي. اشغالګر مجبور دي چې خپلي پښـې بـه سـپک کـوي. او دا وطـن بـه پریږدي.

او کـه افغـان حکومـت دا مسئولیت درک نکړي نـو معضـله بـه همـداسي دوام پیدا کوي او د تباهي عاملین بـه لـه بیګانـه وو وروسته د کابل چارواکي وي.



# د اشغال تر چتر لاندې، د ملي اردو، ملي پولیسو او اربکیانو حکم

لیکنه: مفتي عبد الله رشاد افغاني

نن سبا زموږ معاصر دښمن یو فریب چلولی هغه دا چې د ځوان کهول نه د وطن پالني تر شعار لاندې د اشغال په ساتلو، اوږدېدلو او پراخولو کې کار اخلي، د دې لپاره چې ځوانان مو د اسلام، وطن او خپل افغاني هویت پر خلاف استعمال نشي، اړینه بولو چې د یرغلگرو سره د همکارۍ صورتونه، د فقهي د مستندو کتابونو په رڼا کې را وسپړو ترڅو د هغوی روا او ناروا صورتونه معلوم کړو.

## امریکایان، یرغلگر که مستامنین دي؟

په دار الاسلام کې د کفارو اوسېدل به یا د امن د معاهدې پر بنا وي، او یا به په خپل زور او قوت سره دار الاسلام ته داخل شوي وي، اول ته مستأمن او دوهم ته محارب ویل کیږي، په افغانستان کې امریکان مستأمنین ندي، ځکه د مستأمن لپاره فقهاو دا شرط مقرر کړی، چې دار الاسلام ته به بې له جنګه داخلیږي، (لأن المستأمن یدخل دار الإسلام تارکا للحرب. المبسوط للسرخسي: ۱۰/ ۱۳٦)، او موږ ټول د صحنې شاهدان یو چې امریکایانو په خپل ټول قوت سره پر افغانستان هجوم او وسله وال یرغل راوړ، پر مسلمانانو یې حملې پیل کړې، چې تر اوسه پورې جریان لري. له همدې امله په افغانستان کې د اوسنیو بهرنیو ځواکونو حکم د مستأمین نه، بلکي د محاربو دی.

## د اشغالگرو سره د همکارۍ صورتونه

پر هر مسلمان دا واجب دی، چې د شریعت احکام وپېژني، د جنگ او قتال احکام زده کړي، او تر ټولو مهم دا چې خپل دښمن او دوست وپېژني، د دې لپاره په لیکنه کې کوشش کوو، چې د یرغلگرو سره د دوستۍ او همکارۍ هغه صورتونو متعین شي، له کوم سره چې زموږ وطنوال مخامخ دي.

له کفارو سره همکاري دوه قسمه لري، اول: هغه کومک او همکاري چې سلطه د مسلمانانو وي، اختیار له مسلمانانو سره وي، رهبري د دوی وي، کفار د تابع په ډول ورسره ملگري شوي وي، او د نورو مسلمانانو پر خلاف یو ځای عملیات تر سره کوي.

دوهم: چې د کفارو له مسلمانانو سره جنگ وي، رهبري او اختیار له کفارو سره وي، قومنده د کفارو سره وي، او نور مسلمانانو یې د ځان تابع جوړ کړی وي، او له کفارو سره ملگري شي، په گډه د مسلمانانو مقابله کوي.

په افغانستان کې د امریکایانو یرغل دوهم قسم دی؛ ځکه په هغه وخت کې چې امریکایانو پر افغانستان حمله کوله، نه اوسنۍ ملي اردو، نه ملي پولیس او نه نورو ارگانونه موجود ول، وروسته د یو منظم پلان پر اساس ځیني افغانان

له دوی سره مل شول، په ځان، مال او سر ورسره ودرېدل، د هغوی ساتنه او دفاع یې پیل کړه، تر دې پورې چې کله به یو با احساس افغان عسکر پر امریکایانو حمله وکړه، د نورو افغان عسکرو له خوا به شهید کړل شو.

دا هم ښکاره خبره ده، چې رهبري او اختیار له امریکایانو سره دی، افغانان یې تابع دي؛ ځکه موږ وینو چې د علمیاتو پلان ګذاري، د عملیاتو لپاره وسائل او تجهیزات ټول یرغلګر ورکوي، پر کوم ځای چې د هغوی خوښه وي عملیات تر سره کیږي، او که یې هغوی منع کړي، نو هیڅوک هم د عملیاتو اجازه نلري، د یرغلګرو مشیرانو په بار بار دا اعلان کړی، چې موږ دلته د امریکا او متحدینو لپاره جګړه پر مخ وړو، حامد کرزي په څو واره دا کوشش وکړ، چې د امریکایانو شپني عملیات بند کړي، خو بیا هم چا یې خبره وانه وریدله.

او که د مثال په ډول دفاع وزارت د یو ولایت لپاره اعلان وکړي، چې هلته نور عملیات نه تر سره کیږي، او امریکایان بالمقابل دا حکم صادر کړي، چې موږ هلته ضرورت محسوسه و، چې عملیات باید تر سره شي، نو په داسي شرائطو کې به خبره د چا عملي کیږي؟ ښکاره خبره ده، چې امریکایان څه وغواړي هغه به کیږي، که څوک ترینه انکار کوي، هغه به د افغانستان د اوسني وضعیت مطالعه نلري.

## یاده همکاري د شریعت په تعبیر سره:

داسي همکاري ته په شریعت کې مناصرة الکفار علی المسلمین یا مظاهرة الکفار ومعاونتهم علی المسلمین، او موالاة الکفار ویل کیږي.

د فقهي له نظره موالاة الکفار پر دوه قسمه دی، یو هغه دی چې د ژوند په چارو، تمدني زندګي، لکه له هغوی سره معاملات، تجارت، اقتصاد، طب او نورو برخو کې هکماري وي، دا رنګه موالاة ته اسلام ډېر اهمیت ورکوي، په دې کې که کفارو ته فایده رسیږي، نو بالمقابل مسلمانان هم په هغه شان نفع وړي.

د موالاة دوهم قسم دا دی، چې په هغه کې د کفارو استعلا، د هغوی د قدرت مظاهره او پر مسلمانانو یې غلبه راشي، دا رنګه موالاة که په رایې، فکر او یا مشورې سره وي، که ښکاره او یا پټ، مباشر یا غیر مباشر وي، د اسلام له نظره بلکل حرام او نا روا کار دی، د دې لپاره که څومره اعذار او مبررات تراشي وشي بیا هم قابل قبول ندی، تر دې چې دا رنګه موالاة ته ډېریو ارتداد ویلی، ځکه دا شان همکاري تر ټولو خطرناکه، د الله او د الله د رسول او له مسلمانانو سره ستر خیات دی، د دې په اړه الله رب العزت فرمایې: {یاأَیُّهَا الَّذِینَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْیَهُودَ وَالنَّصَارَى أَوْلِیَاءَ بَعْضُهُمْ أَوْلِیَاءُ بَعْضٍ وَمَنْ یَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ إِنَّ اللَّهَ لَا یَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِینَ} [المائدة: ٥١]

ژباړه: اې ایماندارو! یهود او نصارو دوستان مه نیسئ، دوی خپله یو د بله دوستان دي، او له تاسو نه چې څوک دوی دوستان ونیسي، نو بیا هغه له دوی نه دی، یقینا الله ظالمانو ته هدایت نکوي.

په تفسیر طبري کې د دې په تشریح کې لیکي: الله تعالی مؤمنان د مسلمانانو په مقابل کې د یهودو او نصاری له کومک او تحالف نه منع کړي، او اعلان یې ورته کړی، چې که له تاسو نه یو چا د الله او د الله د رسول او د مسلمانانو په مقابل کې یهود او نصارا د ځان دوستان جوړ کړل، نو هغه له دوی (یهود او نصاری) څخه دی. ځکه چې دغو مسلمانانو هم د یهودو او نصاراو په شان د الله او د الله د رسول او د مسلمانانو پر خلاف تړون وکړ، او خبردار! چې الله او رسول یې له داسي خلکو بېزاره دی. تفسیر الطبري = جامع البیان ت شاکر (١٠/ ٣٩٨)

دې ته ورته نظر د علامه ابن تيميه رحمه الله هم دی، چې وايې: په ياد آية سره چې څوک د يهودو او نصارا و د موالاة نه منع شوي، هغه د ردة په آية سره هم مخاطب دی، د يادو آيتونو دا حکم د امت ټولو پېړيو ته شامل دی، الله رب العزت دا خلک په دې تهديد کړل، چې که داسي وکړئ، نو د دغو کفارو له ټولی نه حسابل کيږئ، ابن تيميه وايې: چې له دېنه دا په ښکاره معلوميږي، چې دا کسان د اسلام له دائرې خارج او مرتد دي، خو دوی به هيڅکله هم اسلام ته ضرر ونه رسوي. مجموع الفتاوى (۱۸/ ۳۰۰)

د الجزائر ځينو قبايلو د مسلمانانو خلاف له فرانسويانو نه کومک وغوښت، د مغرب مشهور فقيه ابو الحسن التسولي د کفر حکم وربانديې صادر کړ. أجوبة التسولي على مسائل الأمير عبد القادر الجزائري: ص ۲۱۰

همداسي فرانسويانو او فرنگيانو د مصر-پر مسلمانانو حمله وکړه، شيخ احمد شاکر اعلان وکړ، چې له دغو يرغلگرو سره که چا هر رنگه تعاون وکړ، هغه که لږ وي، او که ډير، دا په ښکاره مرتد او صريحي کفر دی، په دې کې هيڅ عذر هم قابل قبول ندی، په دې باره کې نه جاهلانه قوميت او نه هم شيطاني سياست معتبر دی، دا تعاون که د افرادو لخوا وي، او که د حکومت يا د قومي مشرانو له لوري؛ ټول په کفر او په ارتداد کې سره يو دي، د ښځو سره يې نکاح ماته ده، لمونځ يې نه دی صحيح، زکات يې نه دی صحيح، تر دې چې يو رنگه عبادت يې هم نه صحيح کيږي، ځکه د عبادت لپاره ايمان شرط، او دوی له ايمانه وتلې او مرتد دي. كلمة الحق: ص: ۱۳۰.

له يادو رواياتو نه دا خبره واضحه شوه، چې د مسلمانانو پر خلاف له محاربو کفارو سره مرسته کول، هغه که هر رنگه وي، او هر قسمه عذر تراشي ورته وشي؛ د اسلام له نظره خومره ناروا او خطرناکه خبره ده، د الله او د الله له رسول او له ټول امت سره يو عظيم خيات دی، نو ځکه يادو علماو وربانديې د ارتداد حکم کړی دی.

البته زموږ د احنافو مذهب پر داسي کسانو د ارتداد فيصله نه کوي، علامه طحاوي رحمه الله د حاطب بن أبي بلتعة په کيسه سره دليل نسې، او مرتد يې نه بولي، چې هغه هم د مکې د فتح خبر کفارو ته ورکاوه، خو په لار کې گرفتار شو، نبي عليه السلام وربانديې د مرتد حکم ونه لگاو.

خو تر ارتداد را لاندې په اوله درجه فسق، ناروا او حرام کار دی، د داسي مسلمانانو حکم د کفارو په شان دی، يعني مجاهد ته يې وژنه روا ده، ځکه کفار چې په ظلم مسلمانان بنديان کړي، او د خپل صف په مخ کې را روان کړي، په دې صورت کې د مجبوريت او اضطرار له امله مجاهدينو ته روا ده، چې پر کفارو حمله وکړي، اگر که هغه مظلوم مسلمانان هم ورسره ووژل شي.

نو هغه مسلمانان چې په خپل سر او مال د محاربو کفارو نه په وسلې دفاع کوي، د مسلمانانو جاسوسي ورته کوي، د متجاوز دښمن په دفاع کې خپل مسلمان ورور وژني، بندي کوي يې، او هر رنگه تعاون ورسره کوي، نو د دغو مسلمانانو مرگ به بيا په کوم دليل جائز نه وي؟ او که د يرغلگرو په دفاع کې مړ شي، نو په کوم دليل به شهيد ورته وويل شي؟، او بالمقابل هغه مجاهد چې په ډير سخت حالت کې د اسلام او وطن له حريم نه په خپل سر دفاع کوي، څرنگه به د اسلام له قاموس سره سم دهشتگر وبلل شي؟

که موږ فرض کړو، چې مسلمانان امريکا ته ولاړ شي، او هلته امريکايان په خپل کور کې وژني، ترې يې، او له آزادی نه يې محرومه وي، او نور داخلي امريکايان يې کومک کوي، جاسوسي ورته کوي، په سر او مال سره يې ساتنه کوي، نو هغه مقابل لوری امريکايان به دغو ته په کومه سترگه گوري؟

له هغو افغانانو، چې د کفارو سره څنګ په څنګ ولاړ دي، وسله واله همکاري ورسره کوي، دفاع يې کوي، او يا په بله نوعه کومک ورسره کوي، نه مو دا هيله ده چې اې زموږ مسلمانو ورڼو! الله درته ياد کړئ، خپل سپ ېڅلی اسلامي تاريخ لږ وګورئ، او د يهودو او نصارا و دښمني د قرآن او حديثو په رڼا کې ځان ته معلومه کړئ، الله رب العزت فرمايي: {يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا بِطَانَةً مِنْ دُونِكُمْ لَا يَأْلُونَكُمْ خَبَالًا وَدُّوا



مَا عَنِتُّمْ قَدْ بَدَتِ الْبَغْضَاءُ مِنْ أَفْوَاهِهِمْ وَمَا تُخْفِي صُدُورُهُمْ أَكْبَرُ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْآيَاتِ إِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُونَ} [آل عمران: ۱۱۸]

ژباړه: اې ايماندارو! له تاسو نه خارج څوک رازدار مه جوړه وئ، دوی ستاسو په بدخواهي کې يوه موقع هم ضايع کوي نه، د دوی د زړه خواهش دا دی، چې تاسو په تکليف کې ياست، بغض د هغوی له خولو نه ښکاره شوی، او کوم (عداوت) چې د دوی په سينو کې پټ دی، هغه تر دې ډير زيات دی، موږ تاسو ته د علامو خبري خلاصي خلاصي وکړې، په دې شرط که تاسو له عقل نه کار واخلئ.

ټول امة مسلمة پر دې مامور دی، چې د الله د دين حفاظت وکړي، په هر وخت او هر حال کې به دا فريضه تر سره کوي، او هر څوک د الله په مخ کې مسؤل دي، کوم چې په لاس کړي وي، او څه چې يې په ژبه ويلي وي، او څه چې په زړه کې راګرزېدلي وي، د هر څه جواب به د الله په وړاندي ورکوي، نو هر مسلمان هغه که په ملي اردو، ملي پوليس او يا اربکيو کې وي، هر يو دي له خپل ځانه سوال وکړي، چې د چا لپاره ځان، مال او سر قربانه وي، او د قيامت په ورځ به د الله په وړاندي څه ځواب وايي.

نور بيا......



# طالبان ولې

## له کابل ادارې سره مخامخ خبرې نه کوي؟

هېواد ریان

سوله د جگړې د دواړو اړخونو اړتیا ده او دواړه لوري باید د سولې لهپاره انعطاف وکړي. ملت د دواړو اړخونو له خوا د جگړې قرباني دی. طالبانو له دې وړاندې ویلي وو، چې د جگړې له اصلي لوري«امریکا» سره د سولې خبرې کوي؛ خو له افغان حکومت سره ځکه خبرې نه کوي، چې د دوی صلاحیت او واک له امریکا سره دی. روانه جگړه امریکا پیل کړې او دغه جگړه د طالبانو انتخاب نه؛ بلکې پرې تپل شوې ده.

طالبانو تېره میاشت د امریکا ولس، کانگرېس او پالیسۍ جوړونکی ته لیک ولېږه او له ټولو یې غوښتي وو، چې امریکا دې نور خپل پوځیان له افغانستان اوباسي. د طالبانو لیک په پراخه کچه تبلیغ شو او گڼو نړیوالو رسنیو د خبرونو مهم ټکی د طالبانو لیک وو.

په کابل کې د څو بریدونو وروسته د امریکا ولسمشر او دفاع وزیر له طالبانو سره د سولې خبرې رد کړې. څو ساعته وروسته افغان حکومت هم ورته غبرگون وښود او له طالبانو سره یې جگړه قبوله کړه؛ خو خبرې اترې نه.

په دې نیږدې ورځو کې طالبانو یو ځل بیا له امریکا سره د مخامخ خبرو د پیل کولو هوډ ښکاره کړ. امریکایي چارواکو هم وویل، چې له طالبانو سره خبرې کوو. د امریکایي چارواکو له خبرو وروسته ارگ هم وویل، چې له طالبانو سره د شرطونو پرته خبرې کوي او دا ځل به د سولې په خبرو کې هېڅ شرط نه وړاندې کېږي.

تېره اونۍ په کابل کې د «کابل پروسې» دویمه ناسته وه، چې د افغان چارواکو سربېره د امریکا، روسیې، چین، ایران، هندوستان، پاکستان، ملگرو ملتونو او د گڼو نړیوالو ادارو استازو پکې گډون کړی وو. تراوسه د ننۍ غونډې پایلې له رسنیو سره شریکې شوې نه دي؛ خو د یو شمېر ویناوالو خبرې رسنیو ته راووتې.

اشرف غني د نورو وختونو په خلاف دا ځل د سولې لپاره ډېر انعطاف کړی و او په پوره معنا یې ځان د سولې لېواله ښوده.

۱) د سولې لپاره سیاسي چوکاټ وضع شي: اوربند رامنځته شي، طالبان د یوه سیاسي گوند په توگه په رسمیت وپېژندل شي، د باور جوړونې ترتیبات ونیول شي او عادلانه او آزادو ټاکنو ته لاره هواره شي.

۲) د سولې لپاره حقوقي چوکاټ وضعه شي او د غوښتنې په صورت کې په اساسي قانون کې د پیشبیني شوې قانوني پروسې له لارې د اساسي قانون بیا کتنه وشي او د بندیانو د آزادولو او د بندیزونو له

لېستونو څخه د ايستلو لپاره قانوني لارې چارې تعقيب شي.

۳) د افغانستان دولت په رسميت وپېژندل شي، د قانون حاکميت ته درناوی وشي، اصلاحاتو ته لاره هواره شي او د متوازن پرمختګ او د کډوالو د راستنېدلو لپاره انتظامات وشي.

۴) د ټولو اتباعو، په تېره د پخلا کېدونکيو طالبانو د امنيت لپاره تدابير ونيول شي.

۵) د اقتصاد او ټولنيز پرمختګ لپاره پروګرامونه پلي شي او په ملي پروګرامونو کې کډوالو او پخوانيو جنګياليو ته ځای ورکړل شي.

۶) د سولې لپاره نړيوال ملاتړ او همکاري ترلاسه شي، په تېره دا چې د ډيپلوماتيک مالي ملاتړ په ترلاسه کولو، د بهرنيو جنګياليو د برخليک معلومولو او له لېستونو څخه له سولې سره د يو ځای کېدونکو افغانانو د نومونو د ايستلو په برخه کې همکاري ترلاسه شي.

۷) او د يوه جامع تطبيقي چوکاټ له لارې بېړني، لنډمهاله او اوږدمهاله شرايط او اهدافو ټاکل او په دې ټولو برخو کې د پرمختګ د څارنې او ارزونې يو مؤثر ميکانيزم رامنځته شي.

ولسمشر غني اووه مهم وړانديزونه وکړل؛ خو د غني له خبرو وروسته د ملي امنيت سلاکار او د ملي امنيت رييس د ولسمشر په خلاف يو ځل بيا د جګړې د سنګرونو د ګرم ساتلو وويل.

په داسې حالاتو کې سوله نه راځي، چې د حکومت لوړ پوړي چارواکي په يوه خوله نه وي او هر يو يې جلا جلا نظر لري.

## طالبان ولې له حکومت سره خبرې نه کوي؟

۱) ځکه او سنی حکومت په ټوله معنا د امريکا په امر چورلېږي او د امريکا له امر پرته هېڅ نه شي کولی؛

۲) حکومت په تېرو درېيو کلونو کې له خپلمنځي اختلافاتو څخه نه دی خلاص شوی او هره ورځ د ارګ او سپېدارماڼۍ ترمنځ سياسي اختلافات رسنيز کېږي؛

۳) حکومت په تېرو درېيو مياشتو کې خپل يو والي له دندې نه شي ګوښه کولی؛ نو د ټول افغانستان مسئله به څنګه حل کړي؟؛

۴) په حکومت کې ځينې کسان جګړه غواړي او په دغه همدغه جګړه کې يې ګټې دي؛ نو دوی هېڅکله هم سولې ته نه راضي کېږي؛

۵) حکومت له تېرو دوو کلونو راهيسې د نويو بربنډ پېژندپاڼو د وېش په اړه سره هوکړې ته نه دی رسېدلی؛ نو دوی به څنګه له طالبانو سره سوله وکړي؟؛

۶) په افغان حکومت کې ډېری پخواني جنګي مجرمين دي او له دې وېرېږي، که طالبان راشي نو د محکمې مېز ته به راکش کړل شي؛

۷) په پورته خبرو سره ځکه طالبان له افغان حکومت سره د سولې خبرې نه کوي او مخامخ له امريکا سره د سولې خبرو غوښتونکي دي.

* * *




# رسانه ها مزدور آئینه ما نیستند

----- ضیاء الرحمن فاروقی

بعد از سقوط حکومت طالبان و ورود کشورهای تحت پرچم ناتو، موجی از رسانه های سمعی و بصری به کشور عزیز ما سرازیر شد و با گذشت زمان مثل مرض سرطانی پیکر لرزان افغانستان را فراگرفت.

باید اعلان کنم که من یکی از طرفداران سرسخت آزادی بیان هستم؛ ولی این طرفداری باعث نمیشود دیده بر درزها بدوزم و هر فریاد را فریاد آزادی بنامم.

ملت افغانستان در کوچه پس کوچه های تاریخ، بینی آنانی‌که دشمن آزادی بودند، را به خاک مالیده است و این سنت را تا وقتی که گلویی برای فریادزدن است ادامه خواهد داد.

با این وجود و طرفداری بیش از حد از آزادی، ما خط قرمز و حریم ممنوعه‌ای به نام اسلام داریم؛ اسلام با ارزشترین چیز در زندگی ماست. اگر تاریخ مردانگی، بیباکی و شهادت‌طلبی مردان ما در آشفته ترین لحظه‌هایی جنگ ثبت کرده، همه از اسلام عزیز ما بوده است.

رسانه های امروز که از برکههای معینی آب میخورند و به ساز حامیانشان میرقصند، به حریم ها می تازند و جز فریاد فساد و به لجن زارکشیدن مردم هدف دیگری ندارند.

امروز غربزدگانی در رسانههای افغانستان از آدرس مردم این سرزمین حرف میزنند، اسلام خواهی ما را عقب‌ماندگی لقب میدهند، برهنگی و انحراف خودشان را تمدن و آزادی عنوان میکنند. آنان باید بدانند ما وارثان این سرزمین هستیم نه آنان، ما برای آزادی خون دادیم و برای غروب استعمار رزمیدیم نه آنان، هرگز آنها الگوی ما نیستند و هیچ‌گاه آئینهٔ ما نخواهند بود.

جهانیان باید بدانند ما کسانیکه پشت شیشه های تلویزیون های‌شان میبینند، نیستیم و این رقاصه های منحرف و هم‌کیشانشان، نمایندههای ما نیستند. ما را با عینک بردگان غرب و کشورهای همسایه نبینند. ما همانی که بودیم و خواهیم بود؛ «ملتی آزاد که برای اسلامش از همه چیز میگیزرد».



# زموږ پر مینو د واشنګټن د ګټو جګړه!

م شفیق

په افغانستان کې د امریکا او ناټو د ځانګړیو ځواکونو قوماندان جنرال جېمز بي لیندر وایي چې په افغانستان کې به جګړه سخته او اوږدمهاله وي. وروسته نوموړی زیاتوي چې په افغانستان کې د امریکا د پوځي شتون موخه د واشنګټن ګټې دي.

دغه پوځي جنرال د خپلو ځینو سیاستوالو او حکومتي مشرانو د ډیپلوماټیکو دروغو پر ځای براﻻ پر هغو واقعیتونو اعتراف کوي چې امریکا یې په افغانستان او سیمه کې پالي.

واقعیت همدغه دی چې امریکا افغانستان ته پوځونه د خپلو ګټو لپاره راوستي او روانه جګړه د همدوی د ګټو جګړه ده، د جګړې د اوږدولو مسأله هم اصلاً د امریکا له ګټو سره غوټه ده، ځکه چې که جګړه پایته رسېږي بیا به په افغانستان کې د دوی د پوځي اډو او مانورو د دوام لپاره پلمه پاتې نشي.

د امریکا او ناټو د خاصو ځواکونو د قوماندان دغه خبره که څه هم لومړنۍ سپینه خبره نه ده، خو که موږ داسې حکومت او چارواکي درلودای چې د ولس د برخلیك په باب یې د مسوولیت احساس کولای نو باید دغسې خبرو او څرګندونو له امریکا او ناټو سره د حکومت پر اړیکو او پرېکړو ژور اغېز درلودلی وای.

ولې زموږ پر خاوره په کال کې تر څلور زره زیات بمونه واوري؟ ولې مو په پردۍ جګړه کې هر کال لسګونه زره هېوادوالو ته مرګ ژوبله واوړي؟

ولې مو هېواد د یوه لوی ځواك د موخو لپاره له سیمه ییزو نورو ځواکونو سره د نیابتي جګړې په ډګر بدل شي؟

دې پوښتنو ته زموږ چارواکي داسې ځواب نه لري چې ولس پرې قانع شي، ولس به پر ځای پرېږدو راځئ سر ګرېوان ته کړو کوم د ضمیر خاوند به پر دې قانع شي چې هېواد او ولس یې داسې په بې رحمۍ د پردیو د موخو لپاره د اوږدو جګړو قرباني شي؟

دا چې امریکا د نړۍ ستر ځواك دی، د جېمز ډاېنز خبره ستر ځواکونه خامخا سترې موخې لري او د تاریخ یو درس دا دی چې ستر ځواکونه له زور پرته نه بله نظریه لري او نه اخلاقي ارزښتونه. خو که د نورو هېوادونو حکومتونه او سیاستوال له خپلو ولسونو سره صادق وي، هېڅکله به دغه ولسونه د لویو ځواکونو تر پښو لاندې نشي.

موږ له امریکا سر ډېغري نشو وهلای، خو له دې ذلت نه خو هر ولس او هېواد ځان ژغورلی شي چې خپله خاوره د لویو ځواکونو د جنګي ماشین له خطرناکو مرګونیو څپو خوندي وساتي.

کابل چارواکیو د څه لپاره د لوړې له مراسمو څو ساعته وروسته امریکا ته بې قید او شرطه پوځي اډې ورکړې؟ هغه امریکا چې پر اچین لوی بم د کوریا د وېرولو لپاره غورځوي او مرستیال ولسمشر یې رسماً اعلان کوي.

هغه امریکا چې زموږ په هېواد کې یې مړه جګړه را ژوندۍ او تر اوولس کلونو وغځوله، اوس یې روسیه او چین را قابو کول لومړی هدف دی او د دې لپاره یې جنراﻻن په افغانستان کې د اوږدو او سختو جګړو اعلانونه کوي، ځکه چې د واشنګټن ګټې دا ایجابوي!

کابل حکومت دې ته ځواب لري چې ولې یې خپل ولس د یوه لوی ځواك د جنګي ماشین مخې ته وغورځاوه؟

# سولې ته سوک ژمن دي؟

❑ ليکنه: عبدالله عزام

مونږ خو له ډېر وخت څخه د امن او د سولې لپاره ژمن او غوښتونکې يو، په ګران هيواد کې مو امن او سوله وه خو اشغالګرو د اشغال په قيمت رانه امن اوسوله دواړه وړې.

او بيا يې راته تل د دروغو او افواهاتو له ګردي ميز څخه د سولې غوښتنه کړي چې راشئ، سولې ته ژمن شئ او سوله وکړئ خو په حقيقت کې امن او سوله همدوی راڅخه وړي او په افغانستان کې سوله او امن نه غواړي.

او کومه جګړه مو چې شروع کړې دا صرف د امن او د سولې لپاره ده ،

سوله او امن راوستل تش په دروغجنو افواهاتو نه کيږي، سوله او امن راوستل قرباني غواړي،

له نن ۲۴ کاله مخکې کله چې د ګران وطن حالات مخ په وحشت او مخ په بربريت روان ول هلته مو هم الحمد الله د سولې او امن لپاره نه هرېدونکې قربانۍ ورکړې او لا به د سولې او امن راوستلو لپاره قرباني ورکوو،

نو اوس به معلوميږي چې سولې او امن ته څوک ژمن دي او سوله څوک کوي اوسوله څوک غواړي؟

د امريکا د نوي ولسمشر د ټرمپ له راتګ سره د تېر په شان يو ځل بيا جګړئيزه ستراتيژي بدله او مخ پر وړاندې روانه کړې، دا په داسې حال کې چې امريکا له تېرو اوولسو کلونو راپه دېخوا افغان جګړه کې ښکېل ده چې تراوسه پورې يې برى نه دى موندلى، بلکې ورځ تر بلې د ناکامۍ په لوري روانه ده، د خپلې ناکامۍ اعتراف يې نظامي جنرالانو او سياسي کارپوهانو او د امريکا پخواني ولسمشر بارک اوباما پخپله کړې وه چې په افغانستان کې مو ماته خوړلې ده او د پوځيانو شتون به مو په افغانستان کې د امريکا لپاره په خورا زيان تمام شي.

دا خبره د يادوني وړ ګڼم چې څه وخت مخکې طالبانو د امريکا ولس او د کانګريس غړيو ته په يوه سرخلاصي ليک کې واضحه کړې چې جګړه زموږ انتخاب نه دى؛ بلکې په موږ تپل شوې، پرون ورځ يو ځل بيا د طالبانو د سياسي دفتر څخه په خپره شوې خبرپاڼه کې پر امريکايي چارواکو غږ شوى چې د افغانستان د مسئلې د سوله ييز حل لپاره د طالبانو د سياسي دفتر سره په اړيکه کې شي٬ مونږ همېش درښتني سولې او امن راوستلو غوښتنه کړې ده او لابه يې غوښتنه کوو.

نو اوس دلته ډېرې پوښتنې رامنځ ته کيږي او دا پوښتني د ټولو افغانانو په ذهنونوکې راڅرخيږي:

هغه دا چې آيا ريښتيا هم امريکا سوله په ريښتوني ډول غواړي؟

آيا دامريکا يرغل هم د سولې لپاره شوي؟

آيا امريکا چې کوم مصارف په خپلو پوځيانو او لاسپوڅي نظام باندې کړي دا هم د سولې لپاره؟

آيا امريکا ته خپلې ګټې مهمې دي او که د افغانانو لپاره سوله؟

خو زه وايم چې نه، امريکا هيڅ هم د سولې او امن لپاره نه دي کړي، کوم مصارف يې چې په خپلو پوځيانو او په خپلو لاسپوڅو کړي او کومې قربانۍ يې چې ورکړې دا يې صرف د خپلو شومو اهدافو لپاره کړي اوبس.

نو مقصودي خبره دا ده چې سوله د ټولو افغانانو سرو، ښځو، کوچنيانو، ځوانانو او بوډاګانو اميد او آرزو ده.

نواوس خو طالبانو د رښتني سولې وړانديز ورته کړى، ګوروبه چې څوک افغانستان کې سوله او امن رامنځته کول غواړي، طالبان او که امريکايان؟

# افغانستان

## باز هم شامل فاسد ترین کشورها

حبیبی سمنگانی

رژیم کنونی کابل همواره لاف از مبارزه با فساد اداری می زند، اما واقعیت اینست که از سران تا ماموران همه شخصیت های بلند و پایین رتبهء رژیم در امواج فساد غوطه می زنند، سازمان بین المللی شفافیت در گزارش تازهء خود افغانستان را چهارمین کشور فاسد جهان قرار داده است، درین گزارش سالانه آمده است که درمیان ۱۸۰ کشور تنها سومالیا، سودان جنوبی و سوریه از افغانستان هم فاسد تر هستند.

اشرف غنی چون سابقهء کاری در بانک جهانی دارد و و مدت دو سال در کابینهء کرزیی به حیث وزیر مالیه کار کرده است به حیث یک اقتصاددان شهرت دارد، از رژیمی که به سرکردگی وی روی کار شد کمتر کسی امید داشت که اوضاع سیاسی کشور را بهتر بسازد، زیرا جنجال های انتخابات گذشته ظرفیت سیاسی ع و غ را برای همگان روشن ساخته بود و همه می دانستند که یک رژیمِ بی اختیار و چند سره در آینده با چه کشمکش ها و چالش های گوناگون سیاسی مواجه می شود.

اما بسیاری ها به خواب و خیال رشد اقتصادی کشور در رژیم اشرف غنی بودند، این خواب و خیال چندان بی جا نبود، زیرا وعده های انتخاباتی اشرف غنی بیشتر بر مسائل اقتصادی و ارتقاء عوائد مردمی و دولتی می چرخید، وی در مناظره های انتخاباتی خود شعار می داد که جلو فساد روز افزون مالی در ارگان های دولتی را می گیرد، به اساس گذارش آژانس خبری پژواک از میان ۵۰ وعده های بزرگ انتخاباتی اشرف غنی نوزدهء آن در رابطه به اقتصاد بود، لهذا مردم به این باور بودند که شاید اشرف غنی برنامهء خوبی اقتصادی داشته باشد و تعهدات انتخاباتی خود را به نحوهء احسن جامهء عمل بپوشاند، اما ای بسا آرزو که خاک شده است!

هرگاه ائتلاف غربی ها به سرکردگی امریکا افغانستان را اشغال کردند رشد سالانهء اقتصاد افغانستان تا چند سال اول حتی به ده در صد هم رسید، اما پس ازینکه بخش اعظم نیروهای خارجی از افغانستان خارج شدند رشد اقتصادی کشور به سرعت کاهش یافت و حتی به دو در صد رسید، رشد چند سالانهء اقتصادی افغانستان از نگاه اقتصاد دانان ابتکار دولت کابل نبود بلکه مرهونِ بودجه های جنگی امریکا و ناتو و ثمرهء مصارف هنگفت مؤسسات خارجی بود.

اقتصاد افغانستان در رژیم ع و غ (یعنی در سه و نیم سال گذشته) نه تنها رشد نداشته است بلکه با اُفت زیادی مواجه بوده است، رشد سالانهء اقتصادی افغانستان در ماه جون سال ۲۰۱۴م (یعنی پیش از رژیم ع و غ) به اساس گذارش ادارهء مرکزی آمار افغانستان شش اعشاریه نه در

صد اعلام شده بود، اما وزارت اقتصاد و اداره‌ء مرکزی آمار افغانستان در ماه مارچ ۲۰۱۷م اعلان کردند که رشد اقتصادی کشور در سال گذشته دو در صد بوده است، تعجب آور اینست که وزارت اقتصاد رژیم کابل این رشد دو در صدی اقتصادی را رضایت بخش خواند و « مژده » داد که انتظار می رود رشد اقتصادی کشور در سال آینده به سه در صد برسد، قابل ذکر است که رشد اقتصادی کشور در سال ۲۰۱٦م (یعنی در سال دوم رژیم ع و غ) حتی به یک اعشاریه سه در صد هم کاهش یافته بود.

درین شکی نیست که شیوع فساد مالی از بزرگ ترین موانع رشد اقتصادی یک کشور می باشد، سازمان بین المللی شفافیت از سال ۲۰۰۵م به این سو افغانستان را نیز در چهارچوب کاری خود جا داده است و میزان فساد در افغانستان را بررسی می کند، این سازمان افغانستان را نخستین بار در سال ۲۰۰۷م در فهرست ده کشور فاسد جهان جا داد، افغانستان در سال ۲۰۰۸م در زمره‌ء پنج کشورهای فاسد جهان قرار گرفت، افغانستان در سال ۲۰۰۹م دومین کشور فاسد جهان شد، سازمان شفافیت از سال ۲۰۱۰م تا ۲۰۱۴م (یعنی تا پنج سال) افغانستان را گاهی سومین و گاهی چهارمین کشور فاسد جهان قرار داد.

گمان برده می شد که رژیم کابل شاید به سرکردگی اشرف غنی از رده‌ء فاسد ترین کشورهای جهان بیرون شود، اما در سال ۲۰۱۵م افغانستان باز هم به حیث سومین کشور فاسد جهان انتخاب شد، افغانستان در سال ۲۰۱٦م هشتمین کشور فاسد جهان خوانده شد، همان بود که حامیان رژیم به ویژه طرف داران اشرف غنی جشن گرفتند که از فهرست فاسد ترین کشورهای جهان بیرون شدیم، اما امسال افغانستان بار دیگر به مقام چهارم برگشته است و گویا دوباره در زمره‌ء فاسد ترین کشورها قرار گرفته است، حالا مدت رسمی رژیم ع و غ رو به پایان است و سران و مقامات رژیم این بهانه را هم از دست داده اند که در سالهای آینده جلو فساد روز افزون مالی را می گیریم، مردم نیز به حدی هوشیار شده اند که دیگر همچون کمپاین های انتخاباتی ۲۰۱۴م به شعارهای دروغین فریفته نمی شوند.

مسئولان سازمان شفافیت در افغانستان به این باور هستند که نهادهای زیادی در چوکات رژیم فعالیت می کنند که در ظاهر وظیفه‌ء مبارزه با فساد دارند، اما هیچ یکی این نهاد ها در مبارزه با فساد مؤثر نبوده است و بعضی از این نهادها فقط برای مصرف پول و خوش نگهداشتن چند فرد باقی مانده اند، ناصر تیموری (عضو سازمان شفافیت) می گوید: نمایندگان پارلمان بارها متهم به فساد شده‌اند، اما تاکنون هیچ دوسیه‌ء این نمایندگان توسط مرکز عدلی وقضایی بررسی نشده است. از سوی دیگر نهادهای مبارزه با فساد شکوه دارند که عامل عمده‌ء حاکمیت فساد در افغانستان مصونیت سیاست مداران، مقامات دولتی و نمایندگان پارلمان از پیگرد عدلی و قضایی است. این نهادها می‌گویند ارگان‌های که باید قانون را نافذ بکنند تحت تاثیر این افراد هستند و نمی‌توانند افراد زورمند را مورد پیگرد قرار دهند.

چند روز پیش، طالبان در طی یک اعلامیه از پروژه‌ء چند ملیارد دالری تاپی استقبال کردند و عملی شدن آن را به مفاد افغان ها دانستند، اما با در نظر داشت حاکمیت فاسد در ارگان های رژیم تصریح نمودند که: « رژیم فاسد کابل چون در فساد مالی و فریب کاری رکورد جهانی دارد و هیچ پروژه‌ء مهمی را بدون فساد مالی و فریب کاری به تکمیل نرسانیده است، درین پروژه نیز حتما دست به فساد گسترده‌ء مالی می زند، لهذا اگر در جریان تطبیق این پروژه برای امارت اسلامی افغانستان ثابت گردد که مقامات رژیم دست به فساد مالی و فریب کاری می زنند و حق مردم را تلف می کنند امارت اسلامی افغانستان جلو آن فساد را می گیرد و از طرف های ذی دخل نیز امیدوار است که درین مورد جداً توجه بکنند، تا این پروژه‌ء مهم ملی با تاخیر و مشکلی مواجه نشود ».

# هم سوله هم د جګړې دوام!!

ویسا

د کابل چارواکو دسولې پروسې په دوهمه غونډه کې له طالبانو سره د سولې یوه اړخیزه طرحه وړاندې کړه، اشرف غني ادعا کوي چې د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ هم د ده د سولې د طرحې تائید کړی دی.

خو پخپله غني یوه ورځ وروسته د امنیتي ځواکونو د ملاتړ په نمانځونده کې بیا وفرمایل: «سوله کوو خو د دې معنا د جګړې پایته رسېدل نه دي!! «.

د اشرف غني همدغه یوه جمله د ده د سولې هغه هر اړخیزه طرحه بشپړه بې معنا کوي. له بده مرغه یو تریخ واقعیت همدغه دی چې په کومه طرحه کې چې د حکومت لخوا اعلان شوې په هېواد کې د جګړو د پایته رسېدو خوبونه نشو لیدای. په څو دلایلو:

لومړی دا چې پخپله غني اعتراف کوي چې له طالبانو سره سوله د جګړې د پایته رسېدو په معنا نه ده، د جګړې د دوام لپاره له پخوا نه د بل مورچل او شعار د جوړېدو ډېرې تودې هڅې وشوې، دغه بل شعار او د جګړې د دوام سبب داعش دی، څلور ورځې وړاندې د کونړ چارواکیو تازه اعتراف کړی چې د دې ولایت په څو ولسوالیو کې د داعش جذب او جلب ډېر زیات شوی دی، پر طالبانو د امریکا د فشار یو دلیل دا ویل کېږي چې نور هغه وخت رارسیدلی چې په افغانستان کې داعش خپل شتون ثابت کړي او د جګړې محاذونه پرانیزي، تر څو اصلي موخې (له امو پورې غاړې ته) جګړه او جګړه مار ولېږدول شي.

دوهم د اشرف غني د سولې طرحه سره له دې چې د ده په وینا ټرمپ تائید کړې، خو د ټرمپ له ستراتېژۍ سره په تضاد کې ده. د افغانستان او سیمې لپاره د امریکا ستراتېژي د جګړو په توندولو، د بمباریو پر زیاتوالي او د پوځونو پر بیا زیاتولو تمرکز لري. تر څو امریکا عملاً پر جګړې ولاړه دغه ستراتېژي بدله نه کړي، د غني د سولې طرحه پر سوله ملنډې دي.

امریکا چې د افغانستان او سیمې لپاره پر جګړه ولاړه ستراتېژي لري او عملاً مونږ پر دې ګواه یو چې امریکا بمبارۍ او جګړې زیاتې کړې، په داسې وضعه کې د سولې غږ یوازې د تسلیمۍ په معنا دی.

فرضاً د طالبانو یوه برخه له جګړې لاس واخلي، جګړه به بیا هم دوام لري. ځکه چې امریکا په لوی لاس دجګړې تودول غواړي او د داعش په نوم یې د دوام لپاره پلمه هم شته.

دې ترخو حقایقو ته په پام اشرف غني اوډګوډ دولت چارواکیو ته په کار دي چې ولس ددوئ په دوه مخو پالیسیوښه پوه ده، په لفاظیو دې ولس ته دوکه نه ورکوي، د دې بدمرغې نړیوالې لوبې په ګرداب کې دې نورافغانان نه ورلاهوکوي

له امریکا سره دې د امنیتي تړون او نورو تړونونو اوستراتیژیو ولس په راز راز ناخوالو سرکړ، زموږ هېواد نور د پردیو جګړو د دوام زغم نه لري. ولس مو د بربادۍ پر پوله ولاړ دی، نورافغانان د پردۍ نیابتي جګړې قرباني نشي- ګاللی که واکداران وطن ته خاین نه وي بائید هیواد له دغه بدحالته نجات ورکړي.

# د خلکو ستونزې حل کړئ او د بدلې لپاره يې کريم رب ته په تمه شئ!

ژباړن: علی احمد راصد

دسعودي عربستان مليارډر او ددې انځور خښتن الراجحي وايي: زه ډېر بې وسې او مسکين وم... تردې چې د ښوونځي په هغه رحله یا چکر کې مې چې د ونډې اخيستنې لپاره يې يو ريال ټاکل شوی وو د برخې اخيستو توان نه درلود دا سره له دې چې په کور کې مې د يوه ريال لپاره ښه ډېر وژړل) خو ټولګييز چکر ته له تلو يوه ورځ مخکې مې په ټولګي کې يوې پوښتنې ته سم ځواب ووايه چې د خپل فلسطيني ښوونکي لخوا يو ريال د زده کوونکو له چک چکو سره د جايزې په ډول راکړ شو... اندېښنې مې لرې شوې او په منډه لاړم په رحله کې د برخې اخيستو لپاره مې نوم وليکه.. بس مسلسله ژړا مې په خوښيو بدله شوه چې بيا يې نو تر ډېرو مياشتو دوام وکړ.

هغه زياتوی لوی شوم ورځې تېرېدې له ښوونځي نه خلاص شوم... د ژوند په اوږدو کې او کلونه وروسته د الله په مرسته د خيرچارو په اهميت پوی شوم.. يوه ورځ مې هم هغه فلسطينی ښوونکی را په ياد شو چې زه يې په يوه ريال نازولی وم.

له ځانه سره مې پوښتنې کولې چې هغه يو ريال به يې ماته په خيرات کې راکړی و او که په حقيقت کې جايزه وه... سم ځواب مې تر لاسه نه کړ... خو له ځانه سره مې وويل که هرڅه و او په هر نيت يې چې راکړ خو په خپل وخت کې يې زما ستره ستونزه پرته له دې چې زه او يا بل څوک پرې پوی شي حل کړه... همدې فکر دېته اړ کړم چې ښوونځي ته ورشم او دهغه فلسطيني ښوونکي پوښتنه وکړم.. ورغلم درک يې را معلوم شو او د هغه ليدوته او پوښتنې ته مې له مخکې نه چمتووالي ونياوه.

راجحي وايي: له هغه ښاغلي ښوونکي سره مې ليدنه وشوه خو په داسې حال کې چې له ستونزو سره مخ و کار روزګار يې نه و او خپل وطن ته يې د تلو اراده کړيې وه.. د خبرو پر وخت مې ورته وويل ګرانه ښوونکيه له کلونو راپدېخوا دې زما په غاړه يو پور دی.. په وراخطايي يې وويل زما پور ستا پر غاړه!! همدلته مې ترې وپوښتل ستا په ياد دي چې يوه زده کوونکي ته دې د پوښتنې د سم ځواب په بدل کې يو ريال ورکړی و له لږ څه فکر کولو وروسته وويل هو په ياد مې دي.. خو ته لکه چې په دې پسې ګرځېدې چې زما هغه يو ريال بېرته راکړې؟ راجحي وايي: ما ورته وويل هو له يو څه بحث وروسته مې خپل موټر ته پورته کړ او ديوه ښايسته کور مخې ته کوز شوو، کور ته ورننوتو ومې ويل زما ګرانه او مهربانه ښوونکيه دادې کور له هغه موټر سره او له ماسره دې تنخوا چې د عمر تر پايه به يې غواړې.. حيران شو ويې ويل دا بيخي ډېر دي.. ما وويل ته باور وکړه هغه وخت ماته ستا په يوه ريال خوښي په دې کور، موټر او تنخوا باندې ستا تر خوښي خورا ډېره وه.. تر دې چې زه يې تر ننه نشم هيرولی.

مليارډر راجحي په پای کې وايي: " د خلکو زړونه خوښ کړئ دهغوی ستونزې حل کړئ او د بدلې لپاره يې کريم رب ته په تمه شئ"

يادونه: راجحي په سعودي کې د خرماوو تر ټولو لوی باغ لري چې تر ۲۰۰زره د خرماوو ونې لري او (القصيم کې د راجحي مزرعې) په نوم يادېږي ټول يې د الله د رضا لپاره وقف کړی حاصلات يې په خيريه ټولنو او د روژې په مياشت کې د حرمينو حاجيانو د روژه ماتې لپاره ويشل کېږي.

د ژباړن يادونه: خدای مې دې غاړه نه بندوي چې دقيق مې په ياد نه دي ځلور يا پنځه کاله پخوا يې په نړيوالو رسنيو کې اعلان خپور شو چې خپله ټوله سرمايه يې چې شپږنيم ميلياړده ډالر کېده ټوله د خدای د رضا لپاره وقف کړه.



# افغانستان به

## د سوريې له برخليکه څوک ژغوري ؟!

ص صارم

دهيوادونو جغرافيوي موقعيت دهغو په سياسي ادلون بدلون کې ډېرعمده رول لري، لکه څنګه چې کتل کيږي دنړۍ په ډېرو هيوادوکې دکړکېچونو او شخړو په سر يا پای پورې ديوه زبرځواک قوت د پرې تار ترلی وي، ځکه هغه تسليحاتي سيالۍ چې دوی يې دزبرځواکۍ او استکبار پرنيلي سپاره کړي ° دهمدې لپاره يې ترسره کوي چې په نړۍ يې پراخ واک او حاکميت راشي .

په دې ډول ده چې دهيواد موقعيت ته په کتو استکباري قوتونو هلته دخپلو لرې يا نږدې ګټو دخونديتوب په غرض لاس اچولی وي ( که څه هم په ډېرو لرې لارو ورته راتاو شوي وي او دسيمې خپل خلک ددغو اغراضو په پېژندلوکې پېړۍ وخت ته اړتيا ولري) .

په نړۍ کې ډېرې داسې سيمې شته چې دبېلا بېلو لحاظونو له مخې يې موقعيت خورا ارزښت لري او همدغه ارزښت يې دناکرارۍ لوی لامل هم وي چې دبېلګې په ډول يې فلسطين، عراق،کشمير،کردستان، سوريه او...يادولی شو.

دملګرو ملتونو په شمول نورې ډېرې بشري ټولنې په سوريه کې په بې رحمانه ډول دولسي۔ وګرو په تېره د دماشومانو وژنه او دکيمياوي وسلو آزاد استعمال ويني، خو هيڅ ډول عملي اقدام نه ترسره کوي، ځکه دلته دسترو قوتونو لاسونه دخيل دي .

داسد دحکومت په شمول روسيې، امريکااو ايران ټولو يو هدف خپل کړی چې دسوريې دعام بې وسه ولس وژل دي او هريوهلته ځانته دځای پيداکولو په هڅه کې دي، ترڅو په دې ډول په سيمه کې مطرح او راتلونکې ګټې يې خوندي شي .



افغانستان هم يوله دغو هيوادونو ګڼلی شو چې ولس ته پـه پـام سره يـې موقعيت هم خورا ارزښتمن دی .

هغه لاملونه چې امريکا اوروسيې يې په متې دسوريې پـه کـورنی جګـړه کې ځان ورګډ کړی، دلته هم ترسترګو شوي دي .

داعش چې ترډېره يې خلک دامريکايي ګټـو دخونـديتوب پروسـه بـولي، په افغانستان اوبيا په شمال کې په مخفي او غير متوقع ډول ظهور وکړ، چـې په ظاهره يې دروسيې اندېښنې راوپارولې، دکب په ۳ مه روسيې په دويم ځل بياخپله غوښتنه تکرار کړه چې په افغانستان کې دنامعلومو چورلکو او الوتکـو په اړه بايد معلومات ورکړي، دروسيې دبهرنيو چـارو وزيـر " سرګـې لاوروف" په امريکا غږ وکړ چې دافغانستان په شمالي ولايتونو کـې ناپېژانـدې الـوتکې ليدل کيږي، چې دوی ته يې په اړه بايد معلومات او ډاډ ورکړل شي .

روسي چاروا کوتردې وړاندې په کابل کې دملګرو ملتونـو اداري " يونامـا" ته هم خپله غوښتنه ليږلې وه ، خو کوم ځواب يې نه و ترلاسه کړی.

روسيه دعوه کوي چې امريکا دافغانستان په شمال کې داعـش وسـله وال ځای پرځای کوي اوهغوی ته امکانات ور رسوي.

دغه راز څه موده وړاندې دبدخشان ولايت په سرحدي سـيمو د "بي ۵۲" ډوله الوتکو بمبار هم په ورته ډول دګاونډيو هيوادونو اندېښنې راوپارولې چـې ورسره سم همدې سيمې ته نږدې چين هم خپلې مانورې ترسره کړې .

دا او دېته ورتـه ډېری داسـې دلالتونـه شـته چې افغانسـتان دسـوريې دبرخليک په اخته کېدو اندېښنې ترې را ولاړېدلای شي .

اوس پوښتنه داده چې په افغانستان کې داسـې څـوک شـته چې هيـواد دسوريې له برخليکه وساتي ؟! او که وي څوک به وي ؟ .

په ځواب کې به يـې هـم ځينـې پوښـتنې مطـرح کـړو چـې هيـواد لـه انارشيزم، تجزيې، ملوک الطوايفي او ټوټه کېدو چـا وژغـوره، پـه هيـواد کـې دنظام بنسټ چا رامنځته کړ؟ ولس له غلو، قاتلانو اوشروفساده چا وساته ؟

که ځواب طالبان وي ؟ نو ظـاهره خبره ده چې داپېـټـی بـه هـم ددوی لـه غـاړې وي اولکـه څنګـه چـې وينوبلـه هيڅ داسې مرجع نـه ترسـترګو کيـږي چې له دغه ناخوالو مـو وژغـوري . روان مقاومت اوجهاد دهيواد له اشغال څخـه دخپلواکۍ سره سره ، ددغه ډول نړيوالـو پلانونو په وړانـدې جګـړه هـم ده ، چـې نور لار ورته هواروي ، طالبـان او ددين عالمان يې په مخ کې سپر دي .

پـه ټولـه کـې علـماء طالبـان او ددين دمدرسې شاګردان لـه هـر غـدر او خيانت نـه لـري وي پـه تېـره دخپلـې خـــاورې سره، دروانشناســـی دحکـــم پراساس هم ثابته ده چې دهيواد مينـه دنورو خلکو په نسبت په هغو خلکـوکې ډېره وي چې له جومـات اومدرسـې سره يې تړاو وي، ځکـه هغـوی دماديـاتو پـه وړاندې له دې مينې نه تېريږي که څـه هم دسر په بيه ورته تمامه شي .

نـن چـې دهغـوی لـه دې سـترو قربانيو څخه کومې سـترګې پټيـږي او په نه دليل يې پـه نـورو ورتپـې، دسبا تاريخ که واقعيتونـه ليکـل، راتلـونکي نسلونه به يې قدر وپېژني او هغـوی تـه به وياړ او افتخار وي .






# دټاپي شریکان هیوادونه دي

## دافغانستان په اړه واقعیتونه اومني!!

ارمان

په معاصر جهان یا نړۍ کې اقتصاد یا معیشت ته دیو بې جوړې ستر قوت په نظر کتل کېږي، دنړۍ په هره برخه یا هېواد کې چې هر څوک کوم اقتصادي گام اخلي، ورسره په چم او گاونډ کې دهغه سیالان یې دمخنیوي زیار گالي اوکوښښ کوي چې بشپړیدو په وړاندي یې خنډونه واچوي ،خو ډیر کم به داسې پیښ شوي وي چې څو سیالان آن دښمنان جوانب دي دمالي گټو ترلاسه کولو په امید سره په یوځای کار کولو ته زړه ښه کړي وي یعنې څو مخالف او مقابل جوانب دي په یوه پروژه یا زیربناء کې دخپل ،خپل سهم مندلو پخاطر دسیالی او مقابلې له دریځ لاس په سر او دمفاهمې او مکالمې دریځ یا ستیج ته دي ختلي وي .

هو! دې لړ کې یو تازه مثال دټاپي اقتصادي پروژې دی، کومه چې دشک پرته دسیمې او منطقوي هېوادو په سطحه یوه خورا مهمه پروژه ده، دحیرانۍ ځای دادی چې په دې مهمه پروژه کې په یوحساب څلور او په بل پنځه کلک مخالف بعدونه یا عنصرونه سهیم او شریک دي او هغوی ټول یې دسرته رسولو لپاره او یکې په یوځای د کار کولو پوخ هوډ لري

ټاپي پروژه په ټوله کې دمنطقې دڅلورو هېوادو ترمنځ یوه اقتصادي پروژه ده او یکې ۴هېوادونه ترکمنستان، افغانستان، پاکستان او هندوستان دیوبل سره شریکان دي، چې په ترڅ کې به یې له ترکمنستان څخه دافغانستان له لارې پاکستان او هندوستان ته دگازو نل لیکه وغځیږي

یاده پروژه دافغانستان اسلامي امارت دواکمنۍ په مهال د سترو اقتصادي ابتکاراتو یوه وه، لیکن بدبختانه امریکاچې دنیو ورلډ اردړېه نشه مسته وه په افغان ولس یې سوکالې او خوشالې نه وه زغملای او په وړاندي یې خنډونه واچول اوس چې د امریکا هغه رعب او دبدبه نده پاتې له فرصت نه یې په گټه دسیمې هېوادو وکړای شول چې په یاده مهمه اقتصادي پروژه عملاً لاس پوري کړي

په دې لړ کې دپروژې دلومړۍ برخې کار له هرات څخه پرانیستل شو ی دلته مهم او دپام

وړ ټکی دادی چې طالبانو (افغانستان اسلامي امارت ) ددې پروژې څخه نه یواځې په کلکه خپل ملاتړ اعلان کړی بلکې هغوی یې دساتنې او حفاظت لپاره هم ټېر وهلی دی ، دکتونکو په وینا: په دې سره یاده پروژه کې ترکمنستان، کابل رژیم، پاکستان، هندوستان او طالبان ګډون لري

د افتتاح په مراسمو کې دامریکا پوځې قومندان جان نیکولسن ګډون ښیی چې امریکایان هم په یاده پروژه کې دلچسپي یا علاقمندي لري ځکه هغوی نه غواړي پاکستان او هند له ایران سره دګازو نل لیکې غځولو په اړه ورته تړون وکړي یعنې امریکا نه غواړي چې دایران څخه هند او پاکستان دګازو کومه نل لیکه وغځیږي

دطالبانو ویاند: ویلي: په سیمه کې داقتصادي پرمختګ لپاره دټاپې پروژې سرته رسول زیات اهمیت لري له دې وجې دوی پکې همکاری ته تیار دي ،په دې توګه طالبانو اوښوده چې دوی یواځې دامریکا نه دخپلې خا ورې ازادولو لپاره جنګ کوي دنورو هغو پلانو او پروګرامونو سره چې دولس لپاره ګټو ر او اړین وي نه یواځې تري ملاتړ کوي بلکي عملا پکې همکاری کولو ته تیار دي چې دا نیت اوعزم زموږ دهېواد او خلکو لپاره دطالبانو له لوري یوښه مثبت پیغام دی او واقعاً یې په دې کار هغوی دخلکو زړونه هم ګټلي

په یاده پروژه باندې دلس ملیارد ډالرو څخه زیات لګښت راځي او ۱۸۲۰ کیلومتره اوږده منصوبه ده، دترکمنستان څخه پیلیږي افغانستان ، پاکستان او بیا هندوستان ته رسي او په راتلو نکو دوه کلو کې به بشپړه شي چې داقتصادي او تجارتي پلوه افغانستان لپاره رښتیا هم یو طلایې چانس دی

دسیمې مشهور ژورنالست رحیم الله یوسف زي د یوبل ژونالست د پوښتنې په ځواب کې چې څنګه دومره مخالف جوانب په یوځای کار کولو ته قانع شول؟ وویل: پدې پروژه کې دټولو جوانبو ګټې نغښتې دي هندوستان اول مخالفت کاوه چې هسې نه کله دهند او پاکستان ترمنځ په اړیکو کې په ترینګلتیا راتلوسره پاکستان تري دجنګې حربې او و سیلې کار به اخلي، ښکاري په دې اړه شاید نړیوال تضمینونه اخستل شوي وي او دطالبانو په اړه یوسف زي وویل: دا دحیرانیتا وړنده ځکه داپروژه اصلاً دطالبانو دواک په وخت کې رامنځته شوې وه او هم په اړه یې ډیر کار هغه مهال بشپړ شوی و (اوس هم ترډیره دطالبانو دواک لاندې سیمو څخه تیریږي) او هغه وخت دامریکا لخوا په طالبانو داقتصادي بندیزونو لګیدوپه وجه شروع نشوه او دادی چې اوس شروع شوه طالبانو یې هرکلی وکړ نو په مجموع کې دټولو لوریو لپاره په ګټه ده

لنډه داچې دټاپې پروژه دافغانستان په ګډون دټولې منطقې لپاره اهمیت لري باید پکې سهیم هېوادونه دطالبانو په اړه خپل سیاسي دریځ ته تغیر ورکړي ځکه طالبان هغه خوځښت دی چې دمنطقې سوکالې غواړي او هیڅکله داسې کوم حرکت ندی چې خدای مکړه هغه دسیمې یاافغانستان ګټې اوګواښي، باید په پروژه کې شریک هېوادونه واقعیتونه او منې او په پټو سترګو دامریکا یې عینکونه دافغانستان او سیمې حالاتو ته او نه ګوري بلکې دخپلو ملې ګټواو دسیمې دمشارکاتو زاویې ورته وګوري.



# لویدیځه غوطه کې

# ستر وحشت

□ حسن مومند

دمحترمو لوستوالو په علم کې به وي او له نړیوالو رسنیو به یې اوري چې له تېرې یوې اوونۍ راهیسې دشام په غوطه شرقیه یانې لویدیځې نومې سیمې دروسې او ایران په مرسته دبشارالاسد وحشي فوځونه مسلسلې هوایې او ځمکنۍ حملې کوي.

شرقي غوطه چې پکې کابو ۴ سوه زره سني مسلمانان ژوند کوي او دشام پلازمېنې دمشق ته څېرمه پرته ده اوس د اسدي وحشيـ فوځیانو له لورې دسخت وحشت ښکار او په بشپړ ډول ترهوایې او ځمکنۍ محاصرې لاندې ده ؛نه ترې څوک خوندي ځای ته وتلی شي او نه هم دوئ ته څوک دوا او خوراکي مواد وروړلی شي.

تراوسه دلته په بمبار او ځمکنو حملو کې له ۵٦٠ نه زیات انسانان وژل شویدي چې کابو ۱۵٠ پکې کوچنیان دي.

دتېرې دوشنبې په ورځ چې پدې ښار بمبار پیل شو نو په هماغه ورځ پکې د ۲٠ کوچنیانو په شمول ۱٠٠ تنان مړه او په سونو نور ټپیان شول.

دشخصيـ رابطو لپاره دکارول کېدونکو رسنیو له لارې دټپي او شهیدانو شویو کوچنیانو خپاره شوي عکسونه سخت زړه دردونکي دي چې په مسلسل ډول خپرېدا یې باید بشري ټوله نړۍ لړزولې وای خو متأسفانه چې ټولې نړۍ دسکوت روژه نیولې ده؛ټوله نړیواله ټولنه دبشار وفوځ دوحشت ننداره کوي او هیڅوک ددې وحشت دودرولو لپاره اقدام اړین نه بولي.

دیادولو وړ ده چې شرقي غوطه د ۲٠۱۳ م راهیسې دمحاصرې په حالت کې ده او دلته نېږدې ۴ سوه زره انسانان ژوند کوي؛دا پلازمینه دمشق ته نېږدې ددولت دمخالیفینو تر واک لاندې ترټولو وروستۍ محصوره سیمه ده.

ددې سیمې دنیولو لپاره دبشارالاسد فوځونو دروانې فرورۍ میاشت په پیل کې هوایې یرغل وکړ او دلته یې په سونو بې ګناه انسانان مړه او ټپیان کړل چې له امله یې پربشارالاسد نړیوال فشار زیات شو نو دغذایي موادو د سخت قلت سره دمخامخ شویو ددې ښار محصورو عامو وګړو ته دغذایي موادو درسولو په موخه بشارالاسد دبمبار ودرولو ته چمتو شوی و چې اوس یې دخپل لورې دا اور بند بیا

مات او یوځل بیا یې دوحشت نه ډک بمبار اوځمکنی یرغل پیل کړ.

دتېر ۲۰۱۷م کال په دسمبر میاشت کې نړیوالو مرستندویه ادارو وېره ښکاره کړې وه چې دشرقي غوطې ټوله سیمه ددولتي ځواکونو له لورې محاصره ده چې ۴ سوه زره اوسېدونکي یې دغذا او دوا دسخت کمښت سره مخامخ دي؛که نړیوالې ټولنې ددې سیمې غم ونه خوړ نو شاید چې دلته بشري ناورین رامنځته شي خو دروسې دباندنیو چارو وزیر سرګې لاوروف ویلي و چې دشرقي غوطې په اړه دمبالغې نه کار اخستل کېږي.

روسیه چې هغه مهال ددې سیمې دمحاصره شویو انسانانو پرضد دظلم او وحشت ودرولو او ددې سیمې د اوسېدونکو سره دبشري مرستو طرفدار نه وه اوس هم دلته دجنګ بندی مخالفه ده او غواړي چې دبشارالاسد او روسې هوایې فوځونه ترهغې دا ټوله سیمه بمبار کړي چې ترڅو پکې ددولت یو مخالف هم ژوندی پاتې نه شي ،که څه هم دغوطې ټول خلک پدې کې خپل ژوند له لاسه ورکړي.

خو نړیوالې ټولنې دزیات فشار؛په نړۍ کې دبشر دحقوقو دمختلفو ټولنو له لورې د اواز پورته کولو او دشخصې رابطو لپاره دجوړو شویو رسنیو له لارې دغوطې دتېپیانو او مړو دردونکې عکسونو د خپریدا او دلویدیځې ټولنې له لورې ددې خبرې نه پس چې :روسیه دامنیت شورى وخت ضایع کوي روسیه موقت اوربند ته اړ شوه او ولسمشر پوتین اعلان وکړ چې دبشري خواخوږۍ پربنسټ به هره ورځ په جنګ کې ۵ ساعته وقفه راوستل کېږي؛ددې اوربند داعلان پرمهال دروسې ددفاع وزیر سرګې شویګو وویل چې په جنګ کې داتوقف به هره ورځ دسهار د ۹ بجو نه دماسپخین تر ۲ بجو پورې وي.

شامي وحشي هوایې ځواکونو چې د ۲۰۱۴م کال راهیسې دشرقي غوطې په ځبر په سونو سیمې دبیلري بمونو په وساطت په کنډوالو بدلې کړې اوس شرقي غوطه چې دخپلو مخالفینو وروستۍ ځاله یې بولي همداسې یې په کنډوالې بدلول غواړي.

په شام کې دبیلري بمونو ایجاد دسهیل الحسن علوي په نوم هغه تن کړیدی چې په شام کې ددوهم هلاکو خان په نوم یادېږي.

کانکریټي پایپونه د (ټي. این.ټي) بارودونه ډک کړای شي او بیا دطیارو نه په یادو سیمو راغورځول کېږي او هریو ډېر لوی ځاني او مالي تاوانونه رامنځته کوي.

ددې هریو جوړ شوي بم وزن کابو ۳ سوه کیلو ته رسېږي ددې بمونو مصرف کم او وزن یې زیات دي چې د ۲۰۱۴ م کال راهیسې یې دبشارالاسد هوایې ځواکونه دمسلمانانو پرضد کاروي او په سونو لویې قریې او ښارونه یې دهمدې بمونو په واسطې په کنډوالوبدل کړیدي.

دملګرو ملتونو دامنیت شورى دروسې په شمول ټولو غړو په اتفاق په شرقي غوطې کې دیوې میاشت لپاره داوربند پربکړه تصویب کړیده خو متأسفانه چې دبشارالاسد فوځونه په پرله پسې ډول ددې پربکړې نه سرغړاوې کوي او په مظلومو مسلمانانو یې تراوسه خپل بمبار روان ساتلی دی خو هیڅوک یې مخنیوی نه کوي.

اصل خبره دا ده چې دنړۍ ټول کفري ځواکونه دمسلمانانو پرضد متحد دي او یو دبل مرسته او مدد کوي.

روسیه ده که امریکا ده،که فرانسه،المان او برتانیه ده ټولو



دخپلو مادي ګټو او نورو شومو اهدافو دحصول په موخه دمسلمانانو مختلفې سیمې دجنګ په ډګر بدلې کړیدي؛په ښکاره دوئ یود بل خلاف ښکاري خو په حقیقت کې ټول داسلام او مسلمانانو سره په دښمنۍ کې متفق دي او دټولو هدف یودی یانې اسلام او مسلمانانو ته ښه ډېر تاوانونه رسول او پروسایلو یې قابض کېدل؛دوئ په ښکاره دیوبل ظلمونه غندي خو دپردې ترشا دمسلمانانو سیمې په خپلو منځونو کې ویشي؛یوبل ته لار ورکوي او دمسلمانانو په مقابل کې دشکست پرمهال یودبل مرستې کوي.

آیا امریکا او ټوله غربي نړۍ دومره بې وسه ده چې په شام کې دروسې او بشار دروان وحشت مخه نه شي نیولی؟

آیا دملګرو ملتونو اداره او دامنیت شورې دومره کمزورې ده چې یوائې دیوې میاشتې لپاره دبشارالاسد او روسې وحشي ـ فوځونو نه دبمبار ودرولو غوښتنه کوي خو په اسانۍ یې دا غوښتنه نه منل کېږي؟

او خبره خو څه ننۍ او یوائې دشرقي غوطې نده بلکې د ۲۰۱۱ م نه تر ننه په شام کې دشرقي غوطې په څېر دسني مسلمانانو سونو کلي؛ښارونه او بازارونه دبشارالاسد دخونخوارو ملېشو؛دایران دپاسداران انقلاب او دلبنان حزب الله او دروسې دوحشي ـ فوځونو دوحشت ښکارشویدي؛پخپله دملګرو ملتونو اداره وایې چې په ۲۰۱۱ م کې پیل شوي جنګ کې د ۲۰۱۷م ددسمبر پورې دوژل شویو شامیانو شمېر د ۴ سوه زرو نه کم ندی.

نیم شام په کنډوالو بدل شو؛کابو ۷ ملیونه انسانان دخپلو کورونو پرېښودلو ته اړ شول؛دلته دبشارالاسد له لورې کیماوي وسلې وکارول شوې او دشامیانو دوژلو لپاره روسانو ایران او دحزب الله لبناني ملېشو اشر جوړ کړ؛نړۍ یې ایله نندارہ وکړه او ددې وحشت د مخنیوي لپاره یې هیڅ مؤثر قدم پورته نکړ.

هیڅوک داسې نشته چې دامریکا او ناټو نه وپوښتي چې دصدام حسین په لاس دځوکردانو دوژل کېدو له امله که صدام داداري ړنګول اړین و او د قذافي په حکم که دځو مخالفینو دوژل کېدلو له امله په لیبیا یرغل او دقذافي ددولت ړنګول اړین و نو ددې دومره ستر قتل عام له امله دبشارالاسد پرضد ولې کوم اقدام نه کېږي او ولې دلته ددې ستر وحشت مخنیوي اړین نه ګڼل کېږي؟

زما هدف دا ندی چې دبشارالاسد پرضد دامریکا او ناټو اقدام دشام ددرد دوا ده بلکې هدف دامریکا او نورلویدیځ دستر منافقت یادونه ده چې پرلیبیا او عراق یرغل کولو کې یې ستر اهداف پوره کېدل نو دیرغل لپاره یې هغه څه پلمه کړل چې ددوئ سره یې هیڅ تړاو نه و او چې دلته یې دبشارالاسد له لورې په روان وحشت کې اهداف پوره کېږي نو پدې ستر وحشت یې سترګې پټې کړیدی او عملاً یې تائید وي.

# دهیواد له نومیالي عالم

## او وتلي لیکوال شیخ گل رحمن حقاني سره مرکه

مرکوال مفتی محمدگل سعید



**لومړی پوښتنه: جناب شیخ صاحب: ستاسو شهرت اوعالمی مقام دتعارف محتاج ندی خوبیاهم دمرکی ددود اواصولو په اساس که خپل تعارف راته وکړی خوشحال به شو؟**

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمدلله وکفی والصلوة والسلام علی نبیه المصطفی وعلی اله وصحبه الذین تمسکوا بالعروة الوثقی وبعد!

زه گل الرحمن حقانی دحاجی ملاصاحب عبدالرحمن زوی اوحافظ جی صاحب تراب خان المسی د افغانستان دپکتیا ولایت دځاځی اریوب دولسوالۍ دهاشم خیلو دخیرمني کلي اوسیدونکی یم حالا دهجرت شپې ورځی په مقدسه زمکه مدینه منوره کي تیروم.

**دویمه پوښتنه: جناب شیخ صاحب که دخپلو زدکړو په باب که رڼا واچوی چه ړومبی زدکړه موچیرته پیل منځنی اولوړی زدکړی موچیرته اوپه کومومشهورو مدارسوکی سرته ورسولی اوهم که لطف وکړی اودخپلو هغو استاذانو نومونه راته وخلی چه زیات فیض اوپوه موترینه اخیستی ده؟**

جواب: موږ ابتداي زده کړی داحمدخیلوولسوالی مربوط دسکندرخیلو په مکتب کی ترسره کړی البته دکمونستانو دشومی کودتا څخه وروسته هجرت کولوته مجبور شو دهجرات دمسافرۍ ژوندکي مو دیني تعلیمات دپاکستان د صوبه سرحد دهنگو په مدرسه مفتاح العلوم کی شروع کړل په پای کې مو دوره حدیث په دارالعلوم حقانیة اکوړه خټک پشاورکې سـ ۱۳۶۷ هـق ش ترسره کړه. زما دمشهورو استاذانو ځنی نومونه دادی فقه العصرمفتی محمد فرید نورالله مرقده. الدکتورشیخ التفسیر والحدیث شیرعلی شاه نورالله مرقده. الشیخ الثقة الامین المفسرـالعلامة أُسیدالله الهزاروي نورالله مرقده. الشیخ الفقیه الکامل، المحدث الوجیة عبد الله نورالله مرقده. الشیخ الامجد، والعلامة الاوحد مغفور الله باباجي مدّظله العالی. الشیخ العالم العامل المحدث المفسرـ العلامة عبدالحلیم (الدیروي) دامت برکاته. الشیخ جامع الاصول والفروع مفتي سیف الله دامت برکاته.

الشیخ الزاهد عمی حبیب الله نورالله مرقده.

**دریمه پوښتنه: جناب شیخ صاحب دخپل تدریس لړی په هکله معلومات راکړی اوراته ووایاست چه دتدریس موڅومره موده وشو اوضمنا دیوه فارغ عالم لپاره تدریس څومره حیاتی ارزښت لری اوستاسی له اند یوه مدرس عالم بایدکومی ځانگړتیاوی ولري؟**

جواب: لله الحمد زماد درس اوتدریس پنځویشت کاله کیږی چی په مختلفومدارسو کي مې وکړ حالا هم په مسجدنبوی شریف مدینه منوره کی داحادیثوپه درس باندی مشغول یم. او دخپل ژوندله لوړو اوژور، سترو اوستونزو اوتجربوڅخه خپلوراتلونکو ځوانانوته په دې هیله خبرورکوم چې که چېرته خواري وباسي کړاوونه وزغمي په ډېر ه حوصله کاروکړي؛ نوښې لاس ته راوړنې به ولري. اوله ټولو هغوتېروتنوځان وساتي چې سړی کړوي.

نو مدرس عالم باید د امام غزالي رحمه الله تعالي دغه توصیه په نظرکی ونیسی او عمل ورباندي وکړی: ده مبارك فرمایلي دي: چه کوم عالم دُنیا پرست وي هغه دحالاتو په اعتبارسره دجاهل نه ډېرسپك اودعذاب په اعتبارسره به په سختی کې مبتلاء شي نوکامیاب

خلق دالله تعالی په نزد علماء د آخرت دی، چه ددوی یوڅو نښانې دا دی: ـ

اوله نښه یې داده: چه په خپل علم سره دنیا نه ګټی، دعالم ادنی درجه داده چه هغه ته ددنیا دحقارت، سپکتوب، خیرنوالی، اودختمیدو احساس کېږی، دآخرت عظمت، دهغه همیشه پاتې کېدلو، اودهغې د نعمتونود ښه والی احساس ورته حاصل وي، اوداخبره په ښه شان پیژني چه دنیا اوآخرت دواړه متضادین دی، دتلې په شان چه یوه چابرۍ درنده شي نوبله بیا سپکه شي، همدغسې یې عکس هم دی. نوڅوك چه ددنیادحقارت، خیرنوالی، اوزرختمیدو احساس نه کوي اووایې چه ددنیا مزې دواړو جهانونو دتکلیفونوسره نه دي تړلي هغه فاسد العقل«لیوني»دي، نومشاهدې اوتجروبې په دي ګواه دی چې ددنیا له مزوسره ددنیاتکلیفونه شته، نود آخرت خوخامخا ورسره شته. پس په چاکې چه عقل نه شته هغه عالم څنګه کېداي شی؟

دویمه نښه یې داده: چه د هغوي په قول اوفعل یعنی ویناګانو اوعمل کې تعارض او مقابله نه وي، لکه ارشاد دي «كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللهِ اَنْ تَقُوْلُوْا مَا لَا تَفْعَلُوْنَ ». ژباړه: ـ دالله تعالی په نزد داخبره ډېره مبغوضه ده چه تاسی وایی اوکوی یې نه. یعنی خپلې خبرې باندې عمل نه کوي.

دریمه نښه یې داده: چه هغوی په داسی علوموکې مشغول وي، کوم علوم چه آخرت کې په کار راتلونکې وی اود نیکوکارونوکې رغبت پیدا کوونکې وي، اود داسې علوم څخه ځان ساتې دکومو چه په آخرت کې هیڅ فائده نه وي، اویایې فائده کمه وي، مونږ خلق دناپوهتیا په وجه هغه ته هم عالم وایو په کوم کې چه صرف دنیا ګټل مقصود وي، اودا جهل مرکب دی، اوچه داسې تن ځان تعلیم یافته بولي اوبیا ددیني علومو اهتمام نه کوي، اوچا چه هیڅ نه وي لوستلی هغوی خوکوشش کوی، ددینې مسائلو پوښتنه کوی، مګرچه څوك خپل ځان دجهالت باوجود عالم شماري دغه ډېر په نقصان کې دی.

څلورمه نښه یې داده: چه هغوي په خوراك، څښاك، اولباس کې میانه روي اختیارکړي وی، اودوی په زیب اوزینت پسې نه ګرځي اود بزرګانو طرز او طریقه یې اختیارکړي وي، ځکه چه دغه شیانو ته چه څومره د چا میلان کمیږي هغومره به الله تعالی ته نزدیکت زیاتیږي او آخرت کې به یې هغومره درجه اوچتیږي.

پنځمه نښه یې داده: چه هغوي د بادشاهانو اوحاکمانو نه لیرې اوسې، یعني هغوی ته بې ضرورته هرګز نه ورځي، بلکه هغوي که په خپله هم راشی نوملاقات دی ورسره کم ساتي، ځکه چه دوی راشه درشه کې ددوی خوشحالی اورضامندی دتکلیف څخه خالی نه وي او بل دا خلق اکثر دظلم اوناجائزو کارونو کوونکې وي نوپه هغوي انکار کول ضروري دی او د دوی دظلم دظهور په وخت کې تینبته کول ضروري وی اوپه هغې چپوالي په دین کې مداهنت دی، او ددوي د خوشحالی لپاره که تعریف کول وشي نو داښکاره دروغ دي، او که چېرې ددوی مال طرفته دطبعیت میلان وشي اوطمع یې وشوه نو دا ناجایزه ده، په هرحال کې ددوی سره اختلاط " ګډون" دډېرو خرابیو مفتاح یعني کُنجی ده.

شپږمه نښه یې داده: چه هغوي دفتوی په ورکولو کې تلوار"بیړه"نه کوي او په مسئله ښودلو کې هم ډېر احتیاط کوي، حتی الوسع که بل څوك پوهه عالم موجود وي نود هغه په حواله دي کړي. ابوحفص نیشاپوری رحمه الله تعالی فرمایي: چه عالم هغه دی چه دمسئلې په وخت ددینه ویریږی چه صبا په قیامت کې به ددې جواب ورکول وي چه دکوم مأخذ (ځاي) څخه دي دغه مسئله ورته ښودلې ده.

اوومه نښه یې داده: چه هغوی دباطني علم یعني دسلوك دډېرزیات اهتمام کوي، دخپل باطن اصلاح اودزړه په اصلاح کې زیات کوښښ کوونکي وي، چه دا په ظاهري علومو کې هم دترقی ذریعه ده.

اتمه نښه یې داده: چه هغوي یقین اوایمان په الله تعالی زیات قوي وي، اود دي ورسره ډېر زیات اهتمام وي. دنبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارك دی چه یقین زده کړئ، یعنی دیقین والاووسره کښنئ، دهغوي تابعداري کوئ، ددي په برکت به ستاسي یقین پوخ شي اود رزق ذموار الله تعالی دي، په دي یقین کولوسره حرص اوطمع ختمیږی، په نیکۍ دثواب اُمید زیاتیږي، لکه دخوراك، څښاك په وجه مریدل اوپه عذاب یقین لکه مار چیچلوسره زهرختلو یقین وي.

نهمه نبنه يې داده: چه هغوي دحرکت اوسکون"کړو وړو"نه دالله تعالی ویره معلومیږي، دالله تعالی هیبت یې داعمالو اواقوالو وغیره څخه ظاهریږي، سکون، وقار، مسکنت، عاجزي او تواضع دده طبعیت جوړشوی وي، دعبث وینا، بې فائدې خبرې، اوپه تکلف سره خبرو کولو نه ځان ساتي، چه دا شیان دفخر اولو یې نبني دي، د یوحدیث شریف مضمون دي چه چا پو ښتنه وکړه چه ټولونه لوئ عالم څوك دي؟ نبی اکرم صلی الله تعالی علیه وسلم اوفرمایل: څوك چه ټول نه زیات دالله تعالی نه ویریدونکی وي، چا پو ښتنه وکړه چې مونږ دکوموخلقو سره خپله ناسته زیاته ساتو؟ نبی اکرم صلی الله تعالی علیه وسلم اوفرمایل: چه د چا په شکل لیدلو سره دالله تعالی یاد تازه کېږي.

لسمه نبنه يې داده: چه هغوي زیات اهتمام دهغې مسائلو سره وي کومې چه داعمالو سره تعلق لري، یعنې دجواز اوعدم جواز، مثلاً په دي سره لمونځ صحیح کېږي، په دي سره ماتیږي، مسواك وهل دومره فضیلت لري اوداسی نورې، اوداسې علومو څخه بحث کم کوی چه صرف دماغي تفریحات وي ځکه چه ددي بله فائده نه شته بغیر ددینه چه خلق یې محقق اوحکیم اوفلاسفر وګڼې.

یوولسمه نبنه یې داده: چه هغوي په علومو کې په بصیرت"دزړه په سترګو" سره نظرکونکي وي، صرف دخلکو په تقلید اواتباع کې دهغې منونکې نه وي جوړشوي، ځکه چه اصل اتباع د خوږ نبی کریم صلی الله علیه وسلم اودهغه دصحابه کرام رضی الله تعالی عنهم اجمعین دی، نودنبی کریم صلی الله علیه وسلم اقوالو اوافعالو جمع کولو کې اوپه هغوي کې دغور اوفکر ډېر زیات اهتمام کوي.

**څلورمه پوښتنه: جناب شیخ صاحب: داچه نن سبا زیاتروځایونو اوپه علمی حلقاتوکی دځینی عالمانو لپاره حدنه زیات القاب راوړل کیږی اوهرڅوک لویه دوره اوموقوف علیه تدریس کوی ایاددی لپاره یوه علمی میتوداومعیارضروری دی اوکنه؟**

جواب: ټولنې اوملتونه هغه وخت ربښتونې پرمختګ کولې شی له غفلت نه راویښیدې شی ضعف اوکمزوری یې په قوت انحطاط اوتنزل یې په لوړتیا بدلیدې شي داصلاح اوسمون په لوری سوق کیدې شی چه فکرتحول اوانقلاب پکی راشی چه هغه علم دی، ظاهره ده چه ددین علم اوفهم دټولو نیکیو سرچشمه ده چاته چه داشی حاصل شو نوددین دنیا سعادت ورته حاصل شو، دې سره هغه خپل ژوند هم ښائسته کړ اودالله تعالی دنوروبندګانو دژوند ښائسته کولوهم کوشش کوی. نوددې لپاره یو علمی میتوداومعیارضروری دی نوکوم کسان چی لویه دوره اوموقوف علیه تدریس کوی نو هغوی ته په فنونو باندې عبور اومهارت ضروري دي چې دکتاب اوطالبانو حق ضائع نه شي چې دا عند الله لوی مسولیت ده.

عالمانو لپاره حدنه زیات القاب راوړل مناسب نه دي دهرعالم سره د علم موافق القاب راوړل ضروری دی چی یوخوا په دی سره د مخالفینو دتنقیداتو څخه بچ شی او بله خوا دسمعت او ریا څخه محفوظ شی.

**پنځمه پوښتنه: جناب شیخ صاحب دهرمدرس خپل تفردات وی اوهراستاذ زدکوونکی ته مختلفی توصیی کوی نودستاسو په اندبایدیوه زده کوونکی کومی نکتی دخپلی زده کړی په وخت په نظرکی ونیسی؟**

جواب: یو زده کوونکی باید یو جامع نظر لرونکی وی دافراط اوتفریط څخه ځان وساتي اوداعتدال مسلك اختيار کړي اود خپل استاد دتفرداتو احترام ولری لکن زده کوونکی باید دجمهورو رایی ته ترجیح ورکړی. زده کوونکی باید لاندنیو نکتو ته متوجه وي:

اول داچه صحیح نیت: یعنی دعلم دحصول څخه صرف دالله تعالی رضاء اوخپل آخرت دروست کول وی اوکوم فاسد نیت اودنیاوی اغراض نه وی، دحدیث شریف مضمون دی چه دعمل بدله په نیت پورې موقوفه ده که نیت صحیح وي اجردی اوکنه بیا اجراوثواب نشته، دحضرت ابن عمر رضی الله تعالی عنهما څخه روایت دی چه څوک علم دالله تعالی نه علاوه دبل څه لپاره حاصل کړي هغه په جهنم کې ځانته ځای تیارکړو (جمع الفوائد) اوحضرت عبدالله بن مبارك رحمه الله تعالی فرمایی چه علم نه مخکې حسن نیت بیافهم بیاعمل بیاحفظ اولدینه وروسته اشاعت اوترویج ته ضرورت دی.

دویــــم دا چـــه طالــــب العلـــم بـــه نفـــس درزائلـــو عاداتواوخرابوصفاتونه پاک کوی: لکه دروغ، غیبت، بهتان، سرقه، فضول گفتگو اوخرابومجلسو کې شرکت نه به همیشه ځان ساتی ځکه علم دزړه عبادت دی، لکه لمونځ دظاهری اعضاؤ عبادت دی بې دطهارت څخه نه صحیح کیږی، همدارنګه علم چه باطنی عبادت دې بغیر دطهارت باطنی څخه نه حاصلیږی (احیاء العلوم)

دریم داچه داستاذانو به ادب اواحترم کوی: دحضرت علی رضی الله تعالی عنه قول دې چه زه دچاڅخه یوټکی لفظ زده کړم هغه زما مولی دی که آزاده وی مې اوکه غلام مې پریږدی، امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمايي چه استاذ ته په نوم آوازمه کوه هغه ته په کنیت آوازکوه (تهذیب)، اوامام حضرت حسین رضی الله تعالی خپل صاحبزاده ته نصیحت کولو چه داستاذپه صحبت کې دزیاتی وینا نه دزیات زده کولو کوشش کوه داستاذ داولاد اودهغه دمتعلقینو هم عزت پکاردې کوم شخص چه استاذ په تکلیف کوی هغه دعلم دبرکت څخه محروم وی.

څلورم دا چه داستاذ خدمت دفلاح دارین ذریعه ده: حضرت معن بن عیسی چه دامام مالک رحمه الله دشاګردانو څخه دې دخپلی زمانې ستر محقق اومفتی هم وو، دغه مقام یې دخپل استاذ دخدمت په بدله کې موندلې دې، دشیخ الاسلام سید حسین احمد (مدنی) رحمه الله په حالاتو کې راځی چه داستاذ شیخ الهند حضرت مولانا محمود الحسن رحمه الله علیه میلمانه (مهمان) ډیرزیات وو اوبیت الخلاء یوه وه نوحضرت مدنی صاحب به هره شپه بیت الخلاء صفاکاوه چه دورځې به بالکل صاف ستره وه.

پنځم دا چه ددینی کتابونو به احترام کوی: لکه په اودس سره به یی مسه کوی او راا خلی به یی، ځکه علم نور دې اودس هم نور دې فلهذا دعلم نورداودس دنور څخه زیاتیږی اودکتابونو طرفته ته به خپې نه اوږدوی اوپه کتابونو دپاسه به څه نه ږدی.

شپږم دا چه دخپلو ملګروسره به همدردي کوي: امام غزالی رحمه الله فرمایلی دی چه دکوم علم څخه تکبر پیدا کیږی هغه علم له جهل نه بدتردې.

اووم دا چه دعلم په زده کړه کی به محنت اوکوشش کوی: دیوبزرګ مقوله ده چه (العلم لایعطیک بعضه حتی تعطیه کلک) یعنې علم یوحصه نه درکوی ترڅوچه ته ټول ځان ورته حواله نکړې.

په کوشش کې دیو څو امورو لحاظ ضروردې: مطالعه چه ددې نه سیوابل شی سره استعداد اوترقی په علم کې نه راځی اوبل سبق په پابندی سره ویل چه حتی الوسع قضاء پکې رانشی، دحضرت امام ابویوسف رحمه الله په مناقبو کې یی لیکلی دی چه (مات ابن لی فلم احفرجهازه ولادفنه وترکته علی جیرانی واقربائی مخافة ان یفوتنی من ابی حنیفة رحمه الله شئ ولاتذهب حسرته عنی) یعنې ځما ځوئ وفات شوې وو، زه دهغه تدفین، تکفین، اوجهازې ته حاضرنه شوم، هغه مې خپلو رشته دارانو اوګاونډیانو ته وسپاره، له وجهې دویرې ددې خبرې نه چه کومه حصه دعلم دامام ابوحنیفة رحمه الله به راڅخه تیره اوپاتې شی چه دغه حسرت اوافسوس به بالکل نه ختمیږی اوبل تکرار اومذاکره ده، امام زهری رحمه الله فرمایلی دی چه دمذاکری نه کولوپه سبب نسیان راځی اوعلم ضائع کیږی.

اتم داچه دعلم په حصول کې حرص اوسفر کول دی: سلفو به دیوحدیث شریف لپاره په میاشتو میاشتوسفرونه کول، دامام شعبی رحمه الله قول دې چه که څوک دشام اقصاء څخه دیمن آخرپورې سفروکړی اوپدې سفر کې دعلم یوه خبره زده کړی زماپه نزد دده سفر ضائع ندې، دابن ابی غسان رحمه الله مقوله ده چه سړې هغه وخته پورې عالم وی چه طالب العلم وی اوهغه وخت جاهل وی چه طالب علمی ته اجازه (رخصت) ورکړی ځکه چه علم خونه ختمیږی.

نهمه داچه په طالب العلم کې ثبات قدمی اوهرقسم تکلیفونه برداشت کول وی: داصحاب صفه حالات خوڅرګنددی چه دومره به وږی وو چه څه به یی موندل نه اوچه نبی اکرم صلی الله علیه وسلم به څه پیداکړل بیا به یی په دوئ تقسیم کړل هغوئ دنبی اکرم صلی الله علیه وسلم څخه علم حاصل کړو اوتمام عالم یی په دین سیراب کړ، اوامام طبرانی رحمه الله علیه دعلم حدیث په زده کولوکې دیرش کاله په پوزې خوب وکړ بستره یې نه وه، دامام مالک رحمه الله علیه قول دی چه ترهغه پورې علم نه حاصلیږی ترڅوچه دفقرلذت ونه څکی.

لسم دا چه دپير كامل سره اصلاحي تعلق قائم كول: لكـه چـه مولاناروم صاحب چه مشهور عالم وو اوبيايي دصوفي شمس تبريز څخه مستفيض شو فرمايي

مولوي هرگزنه شدمولاي روم « » تاغلام شمس تبريزي نه شد

يعنې دتزكيه نفس لپاره سلطان الطرق تصوف دې، الله پاک دې مونږهم حقيقي صوفيان جوړكړي.

يوولسم داهم ضروري ده چه طالب العلم بايد دطالب علمي په وخت كې ډير تعلقات نه پيداكوي: ځكه چه ددې په وجه پـه سـبق كې نقصان راځي، اواشرف علي تهانوي رحمه الله فرمايل كه طالـب وايي چه فارغ شم بيا به صحيح عمل شروع كوم دغه خيال شيطاني وسوسه ده چه په ويلوكې دې عمل پرې ونكړوپـه آينـده كـې عمـل كول خوډير مشكل دى اوعلم په عمل باندې زده كيږي.

اوهمدارنگه دمتقي، تابع سنت، متشرع استاذ څخه سبق ويـل پكاردى، ابن سيرين رحمه الله فرمايي (فلينظـر ممـن تأخـذ ديـنكم) ځكه چه هغه صحبت كې تاثيروي.

**شپږمه پوښتنه: جناب شيخ صاحب: پـه افغانسـتان كـې دامريكـايي اشـغالگرواودهغوى دمزدورانـو پـه خـلاف مقـدس جهاددولس په مستقيمي اوهراړخيزې همكارى پرمخ روان دى. ديوخواخــوږى مجاهــدعالم پــه صــفت مومجاهــدينواوجهاد مسؤلينوته څه توصيه اومشوره دى چه پـه څـه ډول دولـس زړه اوخواخوږى له ځان سره همداسى مله اوهمراه وساتي؟**

جــواب: داســلامي لښكرهرمجاهدســپاهي ويښ ځيــرک اوبااحســاس وي، هرحركـت ئـي پـه شـعوري اوآگاهانـه ډول وي، دوست اودښمن ډيرښه پيژني، صادق اومنافق ډيرښه سره بيلولى شي، نه ددښمنانوپه دسيسو غوليداى شي اونـه پـه ماديـاتو تطميـع كيـږي اوهمدغه اسلامي حكومت ته بـه پـه هرميـدان كـې دخـداي پـاک خاص مرسته ورپه برخه وي، دوى به غالب اودښمنان به ئې مغلـوب وي. ځكه چه ديومسلمان اميروجايب ډيرزيات دي لكـه دمثـال پـه توگه يوڅوداهم دى.

١) ددين ساتنه اودښووني په وسيله دهغه خورول.

٢) دشرعي قوانينو نافذول اوعدل برقرارول.

٣) امنيت ټينگول اودرعيت دسراومال اوابروساتنه.

٤) دشرعي حدودونفاذ اومجرمانوته سزاوركول.

٥) ديوځ اووسلي انتظام اودځمكي دتماميت ساتنه.

٦) دتيرى كوونكوكافرانوپرخلاف جهاداومبارزه كول.

٧) دمالي چاروانتظام اوددولتي شتمنى اوخزاني ساتنه.

٨) دمعاشونوعادلانه انتظام.

٩) پرملي شتمنيوباندې دامانتداروڅارونكوټاكل.

١٠) دعوامو له حالاتونه په مستقيم ډول ځان خبرول.

اميرپه ځانگړى توگه په دغه دروند مسؤليت ترسركولوكې له زياتو مشكلاتوسره مخامخ كيږى نوځكه اسلام داميرلپـاره د وزراؤ اوانصارو ټاكل داسلامي حكومت ضرورت بللى دي الله تعالى فرماي (وجعلنا معه اخاه هارون وزيرا) الآيه.

په لنډ تعبير داقتدارخاوندان درعيت خدمتگاران دى نه مسلط شوي ټول واكمن. خواخوږي، زړه سواندي اوغـم شريـک ملكـري وي نـه جـلادان اوقصـابان. نواسـلامي حكومـت مسـؤليت دي چـه دملــک ټولــوضروري چارولپــاره وزيــران اوريســان اووالـيــان اونورمسؤلين انتخاب كړي ترڅوچـه خپـل درونـد مسـؤليت تـرسره كولوكي دخداى پاک ددين اوملت په حق كـې ښـه خـدمت تـرسره كړي لهذامسؤلين لپاره ضروري دى چه لانـديني اصـول پـه نظركـې ونيسي:

١) په خپل وظيفه پوهيدل.

٢) دخپل ځان رتبه پيژندل.

٣) دماتحت وگروسره ښه سلوک اوښه چلندكول.

٤) پخپله وينا پخپله عمل كول.

٥) پخپل پروگرام ټول غړى خبرول.

٦) ټولو مجاهدينوته پـه ترينـنگ وغيـره كـې پـه يونظركتـل اوخپلى رتبى موافق مكافات وركول.

٧) دناراضگى خبرى پخپله فيصله كول.

٨) خپل مسؤليت اووظيفه پخپله اجراءكول.

٩) په ماتحت كسانوكښى دكارجذبه پيداكول.

١٠) داسى امرنه كول چه دوگرودتنقيد ننبه وگرځيږى.

۱۱) دهغوی مشکلات په نظرکی نیول.

۱۲) دخپل نفرو دسپلین اوکنترول په نظرکی نیول.

۱۳) دخپلوافراد لپاره دفایدی کارکول.

۱۴) ټولوته خپل حقوق اومعاش واعاشه پوره ورکول.

۱۵) دهغوي آدرس مکمل ثبتول لکه نوم، پلارنوم، دوینی دگروپ نمبر، دکورمشر وارث، تاریخ دخول، کسب وکار، درجه تحصیل، علمی اوفنی مهارت اوسوابق، نښه، معاش اورخصتی، موبیل نمبر اوداسی نور.

. ابن ماجه پخپل کتاب تحریرالاحکام فی تدبیراهل الاسلام کی دیوعادل مسلمان خلیفه حقوق داسې بیان کړی:

۱) دنیکی په چاروکی دزړه له کومی دهغه اطاعت کول.

۲) په ښکاره اوپټ دواړو حالتونوکي دهغه خیر خواهي کول.

۳) تل دهغه دمرستي اوملاتړ لپاره چمتواوسیدل.

۴) دهغه تعظیم اودرناوي کول.

۵) دهغه غلیطوته دهغه پام اړول اوهغه ته د رینښتیا خبرورکول.

۶) ددښمنانو پرتوطیوباندي دهغه خبرول.

۷) دکارکنانو اولاس لاندی مامورینو له کړنلاري نه هغه ته اطلاع ورکول.

۸) دملت دخیرښیګنی په چاروکی دهغه معاونت کول.

۹) دهغه ملاتړاوله هغه سره محبت کولوته دخلقوهڅول.

۱۰) دوینا، عمل اومالی لګښت په وسیله له هغه نه دفاع کول، داسلام له نګاه دنسل، رنګ، ژبی اووطن امتیازات لغوه دی دښه سیرت، ښه اخلاقو، ښه عمل اوښه خدمت امتیاز شرعی مسلم امتیاز دي.

**اوومه پوښتنه:**

**دجهاد په لارکی ستاسی له نظره هغه کوم بنیادی اصول اوعادات دی چه که څوک یی عملی اوپیروی وکړی نودالله دلاری رینښتنی مجاهداوسپاهی ورڅخه جوړیدی شی؟**

جواب:

څومره زیات اجرچې په جهادکې شته هومره په نوروعملونوکې نشته، ځکه جهاد عام دی هر څوک یې کولای شي، او جهاد کې ګڼ شمیرعبادتونه راټول شوي دي، لکه د الله سره محبت، اخلاص، په الله توکل اوبروسه، دخپل نفس او مال تسلیمول، صبر، تقوی، د الله ذکر او یادونه خلاصه دا چې ګڼ شمیر نور عملونه هم دي چې په بل هیڅ عبادت کې نشته دي، هغه څوک چې مجاهد وی یوله دوه نیکمرغیو څخه به برخمن کیږي یا فتح او بریالیتوب او یا هم شهادت اوجنت. جهاد د اسلام لوړه برخه ده په حدیث شریف کې هم راغلي دي چې فرمایي: "رأس الأمرالإسلام، وعموده الصلاة وذروة سنامه الجهاد (رواه الترمذي: أبواب الإيمان، وابن ماجه ج ۲ص۱۳۱٤) ". ژباړه: اسلام د هرکار سر دی او لمونځ د اسلام ستن ده او له ټولو اوچته او لوړه برخه یې جهاد دی.

همد راز داسلامي شریعت حاکمیت داسلامي نړۍ یوه مهمه مسئله ده ځکه دمسلمانانو بلکه دټولوانسانو ژونداونیکمرغي دشریعت په حاکمیت پورې تړلې ده کله چې اسلامي شریعت د ژوند په اړخونو اقتصادي، سیاسي، اجتماعي او اخلاقي کې عملي او تطبیق شو ددنیا او اخرت نیکمرغي به مو ترلاسه کړې وي.

له همدې کبله له ټولو لومړی دټولني په مخورو خلکو لکه علماء، داعیان، مجاهدین، فرهنګیان، لیکوالان، ژورنالستان، مفکرین او... باندې واجب ده چې باید یو موټی شي اسلامي نظام د طاغوت له منګولو وژغوري اود الله تعالی پر ځمکه یې پلی کړي. الله تعالی فرمایي: "اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَ فِي سَبِيلِهِ صَفًّا كَاَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَرْصُوْصٌ". (الصف٤) ژباړه: د الله تعالی هغه خلک خوښ دي چې د هغه په لاره کې په داسې شان صف تړلي جنګیږي، ګواکې هغوی یو محکم کړی شوی دیوال دی.

پس ددې له پاره چې داسلامي شریعت حاکمیت منځ ته راوړو نولازمه ده چې دټولنې ټول غړي علماء، داعیان، خطیبان، وینا وال، لیکوالان، ژورنالستان، فرهنګیان اوعام مسلمانان یو موټي شي د الله په رسۍ منګولې ښخې کړي او دې هدف ته درسېدوله پاره خپل ټول امکانات په کار واچوي او هلې ځلې پیل کړي کنه نه ددوی له یو والي پرته هیڅ ممکنه نه ده چې دا هدف لاس ته راوړل شي.

نود تولنې تولو غړو ته مو سپارښتنه ده چې په هرځای او هر موقف کې وي باید د ژوند تولو برخو سیاسي، اجتماعي، اخلاقي او اقتصادي کې د اسلامي خلافت اونظام دېلې کولوله پاره خپلې ممکنه هلې ځلې په کار واچوي، ځکه د اسلام او مسلمانانو عزت داسلام له حاکمیت پرته بل څه کې نشته.

او همدا راز سپارښتنه موداده چې په هرځای اوهروخت کې د هر منکر د بندولو او له منځه وړلو له پاره باید کار وکړو ترڅو تولنې ته د امن او هوسا ژوند فضا برابره شي.

**اتمه پوښتنه:**

**جناب شیخ صاحب: دعملی جهاد ترڅنګ قلمی مبارزه اوهلی ځلی څومره مهمی اومؤثری درته بریښی او د فرهنګی برخو ملګروته مودهغوی د بهبود لپاره عمده مشوری کومی دی؟**

جواب: د اسلام د مقدس دین د احکامو رسوني او ابلاغ ته باید په ځانګړي ډول په نن عصر کې زیاته توجه او پام واړول شي ځکه د کفري عقایدو او تهذیبونو د اشاعت او خپرولو هلې ځلې ډیر شدت اخیستی دی د نن عصرد ابلاغ او رسنیو ډول ډول مختلې تللې وسائل کوم چې د نړۍ د ګوټ ګوټ څخه د تصویر، آواز اولیکنې په ښکلو ښکلو رنګونو او شکلونو کې و هر ملک، هر ښار، هر کلي، هر کور او هر فرد ته پیغامونه رسوي د میډیا دا مخته تللې هر ډول وسائل د کفري عقایدو، کفري تهذیب او وران کوونکو افکارو د نشرولو لپاره په ډیره ځیرکتیا او ماهرانه ډولونوترینه کار اخیستل کیږي.

همدا میډیا او رسنی طاغوتي قوتونو ته د کفر د تیارې د خپرولو د پاره تر تولو مهمه او مؤثره وسیله ده نو ځکه کفري نړۍ میډیا ته تر هرشي زیات پام اړولی دی او په دې ډګر کې تر حد تیر لګښتونه کوي او بې شمیره وګړي یې په کښې استخدام کړي دي.

په تأسف سره باید ووایو چې د طاغوتي میډیا د طوفان د مخنیوي له پاره چې څه لازم او پکار دي او د مسلمانانو ایماني، شرعي او اخلاقي وجیبه او مسؤلیت دی هغه د پام څخه غورځول شوی دی،

د نن عصر د میډیا د پر مخ تللو وسائلو څخه په ډیر لږ مقدار د اسلامي معلوماتو او دیني احکامو د ابلاغ او رسوني کار اخیستل کیږي.

په نني عصر او زمانه کې طاغوتي میډیا ډیر په قوت د وران کوونکي طوفان په شان د اسلام د مقدس دین د عقیدې، احکامو او اخلاقو ښکلې مانۍ ړنګوي او په ځانګړي ډول د ځواني طبقې پر ذهنونو او فکرونو باندي د کفري تهذیب او فاسدو عقایدو توري پردې غوړوي او د اسلام په هکله ډیر بد انځور او تصویر په ذهنونو کې ورنقش کوي

نو په داسې حساسو شېبو کې پر علماؤ کرامو او د اسلامي فکر پوهانو او عامه مسلمانانو لازمه ده چې نور ځانونه بې مسؤلیته و نه ګڼي او نه په لږ څه بسنه وکړي بلکې د طاغوتي میډیا د یرغل په وړاندي د همت لیڅې را ونغاړي، نه ستړیدونکې هلې ځلې وکړي د ژبې او قلم د عظیمو نعمتونو څخه کار واخلي، د حق په بیان مزین ښکلې آوازونه د صوتي او غړیزو وسائلو د لاري تر هر کور او هر فرد پوري ورسوي،

او هم د قلم د عظیم نعمت څخه د کتبي یعني مجلې او اخباري میډیا په ډګر کې کار واخلي او په حقائقو مزین او ښکلي مضامین تر لوستونکو پوري ورسوي. څو د همدې لاري د مسلمان ولس د تولو افرادو، نارینه او ښځو، ځوانانو او کوچنیانو ذهنونه په اسلامي معلوماتو منور او روښانه کړي، عام او خاص تول وګړي په اسلامي معتقداتو، شرعي احکامو او نبوي سپېڅلو اخلاقو خبر کړي.

خصوصاتعلیمي مرکزونه او تعلیمي مؤسسې د دعوت لپاره مهمه وسیلې دي، کله چې د ماشومانو په وړوکتونو، دارالحفاظونو، جهادي مرکزونو، دیني مدرسو، پوهنتونونو، د ذکر په مجالسو، معهدونو او تعلیمي مؤسسو کې، د اسلام د زده کړې لپاره په زړه پورې تعلمي نصاب منځ ته راشي، او ترڅنګ یې عاملین مخلص علماء او روزونکي او بهترین نظام موجود وي، له شک پرته به امت ته به داسې علماء وړاندې کړي چې د امت د رهبرۍ او قیادت استعداد به ورکې موجود وي. په پا ی کې داسلامی امارت دفرهنګی چارو دکمیسیون له محترومسئولینوڅخه مننه کوم چی ماته یې دمرکی موقعه مساعده کړه. والسلام.

کلک څونه

زیري

# غزل!

خالق یار احمدزی

افسانې شي ترینه جوړې، چې له کرښو جوړ غزل شي
چې چپه راسته ځلیږي ړنګ اوبنګ لکه اوربل شي

چې د مینې جام پرې نوش کړي، چې آذان دښکلا وکا
کلیمې چې د حق لولي ښایستوکی قاري ګل شي

چې طالب ستا د دربار وي په درشل دې شونډې ګدي
عزرائیله ورته راشه که روضه کې یې اجل شي

چې وصال دجانان غواړي، چې په زړونوکې زړه ساتي
ته یې غم د ګریوان وکړه! چې یې حال پټ د ګوګل شي

چې خوبونو کې یې ستایې، زندانونه پسې ګوري
نور یې یخې کړه پرې سترګې له کنعانه چې ورخپل شي

هغه: ستوري پسې چاڼ کړل، لمر سپوږمۍ ترې انکاریي ؤ
که یې لټه په اغزو شوه، ور پیدا به لکه ګل شي

د محراب منبر امامه جهادي سپه سالاره
په یون لیکه دې روان یم که قدم مې ستا په پل شي

څه لیکل مې خالقیاره په یادیز مازدیګري کې
د غر څوکه سپینه لاره که رسید مو تر منزل شي

د فتحې وخت قریب د الله نصر په راتلو دی
جانانه وار خطا نه شې سهار په راختو دی

مظلومه ستا فریاد او آه تر عرشه رسیدلی
د اوښکو سمندر کې دې فرعون په ډوبیدو دی

مومن نظام به راشي، ته د صبر لمن نیسه!
مرام د آزادی ته مو ارمان په رسیدو دی

پردیو چې راوستی دی، پردو سره به تښتي
تا نه دي اوریدلي، پردی کټ تر نیمو شپو دی

کیسه د ابابیل او ابرهه دلته تکرار شوه
که نه چرته داخر طالب له زوره د ناتو دی

دریغ دې اسلامي دی، کلک ولاړ ور باندې اوسه
همدغه خو توپیر ستا او د نورو پرګنو دی

فریب د زمانې کې پام چې لاره ورکه نه کړې
کاروان د شهیدانو مو مشال د منزلو دی

اذان د استقلال ته بلال خپله را روان دی
تکبیر د مجاهد څکه د غرونو له سرو دی

اشغال په ملا مات شوی اوس د تیښتې ګودر ګوري
حفیظ خو سر له اوسه پروت د شکر په سجدو دی





## غزل

حمزه حسيني

زړونه پېلي مو په تار د مينې
دار بدلوو مونږه په نار د مينې

د رب رضا په سرو لمبو کې غواړو
د حريت ژوند په زولنو کې غواړو

ځان سوځو کوو رفتار د مينې
د وخت موسي فرعوني سر ماتوي

د صليبي جهان لښکر ماتوي
فتحه يې ګل کړي په رخسار د مينې

د ازادۍ ګلاب به وسپړيږي
له خوشحالۍ به بورا ونڅيږي

يو ګل به بيا راشي بهار د مينې
خالد په توره تورتمونه وهي

راوړي رڼا پسې مزلونه وهي
خور تبسم کوي په لار د مينې

حمزه ته ورکړې ربه دغه مقام
د شهادت رښتين بې غمه مقام
چې پر زړګي يې شي پرهار د مينې

## #معصوم طالب

زم زم غوندې چينه لرم د سترګو آينه کې
کعبه لرم د مينې د زړګي په مناره کې

يو راز لرم په پټه له جانان سره د مينې
ساتلې مې يې نښه د ململو په ټوټه کې

دا خره حجره ګۍ مې دې لا ځکه راته ګرانه
ټپونه ورکې شمارمه چې جوړ مې دي سينه کې

له هسکه به مې خود نو سپيني حورې ننداره کړي
چې سر مې دی نيولی جانان ته په تحفه کې

يو راز دی يو اغاز دی دزړه پټه درزا کې
چې سر مې کله ايښی وي مولا ته په سجده کې

معصوم طالبه اوښکه مې له دغو ټپو نه ده
د اوښکو يو بل باب مې دی پرانيستی په سينه کې

## غلیمګیه

#شاعر: جبير احمد مشهود

سوله کوو خو قربانۍ نه پلورو ميز ته درځو سپينه پګړۍ نه پلورو
ها چې ځانونه يې فدا کړل په دين هغه د ګل غوندې ځوانۍ نه پلورو
قدرت پرست ډالر پرسته نه يو د يتيم ستوني کې سلګۍ نه پلورو
د ماديـاتو پـه بدل کې واوره غليمه وياړ د خپلواکۍ نه پلورو
چې تاريخونه يې ځلاند ساتلي غازي ميوند او ملالۍ نه پلورو
هغه د لاري پر سر جوړ قبرونه ها مزارونه او جنډۍ نه پلورو
موږ د ثالث عمر ارمان ته رسو ها د منصور غوندې هستۍ نه پلورو
مشهوده دوي ته چا ويلي کنه موږ مو سپين لمر د ازادۍ نه پلورو

## اووه خبرې

امام جلال الدين سيوطي رحمه الله وايي چې اووه خبرې انسان رسوا او ذليله کوي ① له بلنې پرته دعوت ته تلل ② په مجلس کې د خپلې مرتبې پورته کښېنستل ③ د نورو په خبرو کې دخالت کول ④ ميلمه کيدل او د کور پر خاوند امر کول ⑤ د ناوړه شخص سره دوستي کول ⑥ د سخت زړي او بخيل شتمن څخه مرسته غوښتل ⑦ هغه خلکو ته وينا کول، چې اوريدو ته ئې چمتو يا متوجه نه وي.



# آيا د هېواد د کانونو پر لوټمار توافق شوی؟

ويس مبصر

د امريکايي کمپنۍ بلک واټر لخوا د افغانستان د کانونو د امنيت نيولو خبر يو ځل بيا رسنيو ته راووت.

نوموړي د تېر زيږديز کال په نيمايي کې د ټرمپ حکومت ته د افغان جګړې په باب وړانديز کړی و چې د رسمي پوځ پر ځای يې امنيتي کمپنيو ته وسپاري.

د دې کمپنۍ بنسټګر ټرمپ ته وړانديز کړی و چې د رسمي پوځ پر ځای که افغان جګړه امنيتي قراردادیانو ته وسپاري خو چنده به د جګړې لګښت را ټيټ کړي.

له موده وروسته د بلک واټر د بنسټګر اېرک پرنس له لوري د امريکا حکومت ته د افغانستان د نادره کانونو د امنيت د خونديتابه وړانديز وشو، چې اوس دا دې بيا دغه خبرونه خپاره شول چې اېرک پرنس خپل د بهرنيو چارو وزارت ته د افغانستان د کانونو د امنيت په اړه پريزنټېشن ورکړی دی. دا سې هم ويل کېږي چې بلک واټر په کابل کې دفتر هم پرانيستی دی.

پورتنيو واقعيتونو ته په پام ويلای شو چې هم د امريکا حکومت د افغانستان د کانونو په تېره د نادره فلزاتو د کانونو په اړه جدي فکر کوي او هم د بلک واټر چارواکي.

راځو افغان اړخ ته، اشرف غني امريکا ته د لومړي سفر په مهال ډونالډ ټرمپ ته د افغانستان د کانونو د ايستلو وړانديز کړی و او اوس د کانونو وزارت چارواکي دا تائيدوي چې امريکا د افغانستان پر کانونو په پانګونې کې لېوالتيا لري. معنا دا چې مسأله حل ده، د اردو ژبې د متل په مصداق «ميا بيوي راضي کيا کريګا قاضي!»

ستونزه همدغه ده چې امريکا د افغانستان تر ځمکې لاندې خزانو ته سترګې نيولې او د کابل واکمن چې د دوی تر احسان لاندې دي په دې کې ورسره راضي دي.

که د ولس د سياسي مشرانو، مدني فعالانو او مسوولو او باضميره روڼاندو اعتراض او چت نشي د امنيتي تړون د لعنت په څېر به له امريکا سره زموږ د طبيعي زېرمو د لوټ او تالان معامله شوې وي او همدغه به د کلونو کلونو لپاره بيا هم زموږ د ولس د وژلو او ځپلو د خونړۍ لوبې د دوام يو ستر لامل وي.

که د هېواد سياسي او قومي مشران، مدني فعالان، رسنۍ او روڼاندي په دغسې برخليک ټاکونکو مسايلو کې چوپ پاتې شي معنا يې دا ده چې دوی هم له امريکا څخه تمې لري او د همدې ذليلانه تمو له لامله د هېواد د ملي شتمنيو پر لوټ او تالان چوپ دي. بيا خو که ولس هم کوم غبرګون و نه ښيي، نو د افغانستان دې الله مل شي.



# د طالب جان خط

ډاکټر جمال الدین پارسا

امریکایي رسنیو کې لویه هنګامه ده. ته وا میډیایي سونامي راپاڅېدلې، له سي این این تر سي بي ایسه، له فاکس نیوز تر واشنګټن پوسټه او ها پلو له ګارډین تر ټیلګراف او بي بي سي پورې. که د اخبار سرخط دی یا د ټیلویزیون ګردی میز، د هغه لیک داستان یې رانښلولی چې تېره ورځ د آسیا له یوه غریب هیواد افغانستان څخه د یوه ځوریدلي ملت په استازیتوب د امریکایي اولس په ادرس لیږل شوی دی. دا چې په لیک کې څه لیکل شوي، اندازه یې له دې پراخ انعکاس او میډیایي هنګامې څخه لګولی شئ. که د لیک په ټوله منځپانګه غږیږو، شاید دا مقاله یې د احتوا تاب ونلري. خو دا چې طالبان له منظم او پایدار نظامي مقاومت سره سره اوس داسې توپاني او په تول پوره لیکونه هم صادروي، نو ماته یې هغه د پخوانیو لیکونو خبره رایاده کړه چې ویل کیدل به:

چې خط دې نه و، خط دې نه و چې خط دې راغی، خط دې راغی د طالبانو لخوا په داسې حساس وخت کې، د داسې مستدلل او منطقي لیک لیږل او د امریکایي دموکراسۍ اساسي ستون (ګانګریس او عام خلک) وربانـدې مخاطب کول له شک پرته د طالبانو په سیاسي بلوغ او نبوغ ګواهي ورکوي. پخوا طالبان د یوې سرسخته او نه ماتیدونکې جنګي ډلې په حیث پیژندل کیدل.

مګر د تازه لیک په شمول د هغوی وروستي سیاسي مانورونه او ابتکارات په دې دلالت کوي چې دغه خوځښت پوخ سیاسي بنیاد او د حساب وړ فکري عقبه لري او هره خبره او مدعا یې د قوي منطق په پایو استواره ده. دا چې د طالبانو وروستی لیک په معاصر سیاست بازار کې ولې دومره درونـد وتلل شو ځینې ځانګړنې یې درشمیرو. لومړی: د طالبانو د لیک مخامخ مخاطب او مرسل الیه د امریکا اولس دی.

هغه اولس چې کانګریس یې سیاسي استازیتوب کوي. امریکا چې په اوس وخت کې د دموکراسۍ تر ټولو پخوانۍ او مشهوره بیلګه بلل کیږي، د واک اصلي محور یې د اولس رایه او نظر دی. په امریکا کې یو نیم میلیون مدني ټولنې فعالیت لري چې دا د اولسي ځواک یو بې سارې بیلګه ده. په دغه وړ حکومتي سیستمونو کې د اولس د افکارو توجیه سیاستونه بدلولای شي.

طالبانو د امریکا داولس او ولسي استازو په مخاطب کولو سره په اصلي ځای وار وکړ نو ځکه یې پایله هم تر توقع لوړه وه. دوهم: طالبانو د خپل لیک لپاره خورا دقیق وخت انتخاب کړ، په داسې حال کې چې د ټرمپ په ستراتیژۍ څو میاشتې اوړي. خو په افغانستان کې لا هم جګړه له بن بسته نه ده وتلې او په امریکا کې دجګړې د دوام په اړه پراخې پوښتنې او اندیښنې راپاریدلې دي.

طالبانو د دې لیک په استولو سره په امریکا کې د جګړه اړونـد بحث نـور هـم تـود کـړ، او پـه قـوي دلائلـو سره يې امریکایانو ته وفهموله چې د افغانستان پـه اړه د ټرمـپ او نـورو جنګ غوښتونکو محاسبات اساسي کمزورۍ لري.

دریم: د لیک بله ځانګړنه داده چې طالبـانو د جګـړې لـه ډګره د منطق او استدلال ژبه کارولې، هغـوی د ټرمـپ پـه شـان جنګ غوښتونکې لفاظي نـه ده کـړې او نـه هـم د احساساتو څپو په مخه کړې. د طالبانو لیک لـه سره تـر پایـه د منطـق او استدلال په کرښه روان دی.

په اوس زمانه کې چې د خلکو ذهنـي سـطحه لـوړه ده، که د هرې موضوع اړوند قناعت بښونکی استدلال واوري نـو که په مخامخ یا شعوري توګه قناعت ونـه کـړي هـم، لاشعور يې قانع کیږي او په ناخودآګـاه ډول حقـائقو تـه د تسـلیم سر ټیټوي. طالبـانو پـه افغانسـتان کـې د امریکـا د اوولـس کلنـې بوختیا ګټه او تاوان په خورا دقیـق ډول ارزولـې او بیـا یـې پـه قوي دلائلو ثابته کړې چې امریکا د افغانستان پـه جګـړه کـې یوازې تاوان کړی او که له دې جګـړې ځـان ټـول نکـړي نـو تردې څـو چنـده نـور زیانونـه هـم وربیښـیدلی شي. څلـورم: طالبانو په افغانستان کې دجګړې د پای ته رسولو او د ستومانه اولس د هوساینې لپاره خپل موقف په روښـانه ټکـو وړانـدې کړی دی. او دا يې ثابته کړې چې دوی کومه سـطحي جنګـه ډله نه، بلکې د یوه ملت استازی سیاسي ځواک دی. طالبانو د افغان اولس د دیني او ملي ارادو د ممثل ځواک لـه موقفـه لـه امریکـا سره د داسـې تفـاهم لپـاره امـادګي ښـودلې چـې دافغانستان د ازادۍ او دلتـه د یـوه معیـاري نظـام د جوړیـدلو سبب شي.

د طالبانو وروستی لیـک او پـه هغـه کـې څرګنـد شـوي مواقف د ډېر اهمیت وړ دي. تر دې که د سولې لپـاره واقعـي اخلاص موجود وي همدغه لیک د سولې د یوه رښتیني بهیـر پیلامه او لومړۍ خښته کیدلای شي. همدې اهمیت ته پـه پـام سره هغه افغانان چې په امریکا او دنړۍ په نورو هیوادونو کـې اوسي د دې لیک د انګریزي متن د تشـهیر او نـشر لپـاره بایـد دخپل توان په اندازه کار وکړي او په خاص ډول په امریکا کې بایـد د ټـولنیزو رسـنیو لـه لارې سپانسر ـ او نشر ـ شي تـر څـو د امریکا ټولو خلکو ته ورسیږي او د افغانستان دستونزې په حـل کې کومک کوونکی واقع شي.

## د پلي ګرځېدو نورې ګټې

ژباړه: حمیدالله حمیدي

دا سمه ده چې ورزش کول روغتیـا تـه ګټـه لـري، خـو خلک دومره بوخت دي چې پـه مـنظم ډول ورزش کولـو تـه وخت نه مومي. د همدې لپاره غـوره لاره دا ده چې پـلی مـزل وشي. پلی مزل ساده او اسانه فعالیت دی خو روغتیـا تـه ډېـره ګټه لـري او د ګڼـو نـاروغیو مخـه نیسي. کـه مـو له کاره زړه تنګېږي، نو د څو دقیقو لپاره پلی مزل وکړئ.

که هره ورځ ۱۵ دقیقې پلی تګ وشي، نو منفي احساسات وجود ته لاره نه شي موندلی. د پلي ګرځېدو پر مهال انسانان د ستونزو پر هواري فکر کوي او غـوره حلـلارې مـومي. د پـلي تګ پر مهال د انسان ذهن په استراحت پیل کوي او دغـه راز د دې سبب کیږي چې د کارونو د ترسره کولـو لپـاره نـوې او اسانه لارې ومومي. د پلي تګ بلـه ښـېګڼه دا ده چې د ګرځېدو پر مهال بهـر له بېلابېلـو خلکـو سره مـخ کېـږي، له هغوی سره پېژنې او ښايي داسې څوک ومومي چې یوه ورځ مو لویه ستونزه در هواره کړي. مطلب دا چې د پـلي ګرځېـدو پـر مهال ښايي داسې څوک وپېژنې چې د موخـو او یـا کاروبـار له اړخه ور سره ډېر نږدېوالی ولـرۍ، همـدا د موخـو او کاروبـار نږدېوالی ښايي دواړو ته ګټه وکړي.

# د بازار، کلینیک

## او ښوونځي ګناه څه ده؟

عبدالستار سعید

د فبروری د میاشتې په ۹ مه نیټه د بي بي سي په ګڼون یو شمیر رسنیو خبر ورکړ چې د امریکا له ملاتړه برخمن افغان ځواکونه د هیواد شمال تخار ولایت کې د درقد هغه ښارګوټي ته ورسیدل چې له دې وړاندې د طالبانو په واک کې و. خو رسنیو دا ونه ویل چې وروسته هلته څه پیښ شول؟ د

د افغانستان په شمال ختیځ تخار ولایت کې د ینګي قلعه، خواجه بهاوالدین او درقد ولسوالۍ له یو بل سره پیوسته پرتې دي. د دې ولسوالیو خلکو څه موده وړاندې د یوه مشترک اقدام له مخې فیصله وکړه چې د شور عرب په سیمه کې د درې واړو ولسوالیو ګډ بازار جوړ کړي. دا له بیکارۍ او اقتصادي ستونزو سره دمخ افغان اولس لخوا د خپل ډول نوی اقتصادي تشبث و چې له مخې به یې د دریو ولسوالیو خلک د یوه ګډ مارکیټ او کارځای مالکان ګرځیدل او شاید په محلي کچه یې اوزګارو ځوانانو ته کار پیدا او د اقتصادي انکشاف څرخ ته حرکت ورکړی وای.

په کومه دښته کې چې د دغه ښارګوټي نقشه وایستل شوه د شور عرب سیمه ورته وایي. دا سیمه د درقد ولسوالۍ مربوط ده خو د ینګي قلعه او خواجه بهاء الدین ولسوالیو اوسیدونکي هم ورته مساوي لاسرسی لري. د شور عرب ښارګوټي له بنسټ ایښودلو وروسته ډېره زر وده وکړه. د څو میاشتو په جریان کې په کې له زرو زیات دوکانونه په پاخه ډول جوړ او پرانیستل شول، د ګڼو نورو مارکیټونو کار هم په چټکۍ روان و، د مسجد، ښوونځي، کلینک، لوبغالي او نورو عامه تاسیساتو لپاره هم ځمکې تعین شوې او د ځینو د جوړولو کار پیل شوی و. په وروستیو کې ښار ګڼه ګونه پیدا کړې وه او ورځ په ورځ د پراختیا او غوړېدو په حال کې و.

خو د تخار ولایت له نورو ښارونو سره د دې ښارګوټي توپیر په دې کې و چې دغه سیمه د طالبانو په واک کې وه، حکومتي قواوې چې د دې ښارګوټي د نیولو لپاره یې عملیات پیل کړي وو طالبانو ورسره ځکه مقاومت ونکړ چې د خلکو شتمنیو ته د زیان اوښتو او د بازار د تخریب ویره وه. طالبان له دې سیمې په شا شول، اما کله چې حکومتي عسکر د شور عرب ښارګوټي ته ورسیدل، سم د واره یې د ښار په نړولو پیل وکړ. حکومتي ځواکونو له ځان سره ګڼ شمیر اسکواتورونو راوستي وو چې په وسیله یې د شور عرب د ښارګوټي د زر شاوخوا دوکانونه، مارکیټونه، مسجد، روغتون او نور عام تأسیسات په منظم ډول تخریب او یو ودان ښارګوټی په نړیدلي کنډواله بدل شو.

د شور عرب د ښارګوټي سیستماتیک او عمدي تخریب د دا

ډول پیښو لومړنی نه ده، بلکې د افغانستان ټولې هغه سیمې چې د طالبانو تر واک لاندې دي عامه تاسیسات لکه بازارونه، ښوونځي، مدرسې او حتی روغتونونه یې د حکومتي ځواکونو لخوا د عمدي تخریب له ګواښ سره مخامخ دي.

## څومره سیمه د منظم تخریب له ګواښ سره مخ ده؟

طالبان چې له تیرو ۲۳ کلونو راهیسې د افغانستان په سیاسي صحنه کې فعال دی او په افغانستان د امریکا له برید وروسته یې د تیرو ۱۷ کلونو په جریان کې د کابل د حکومت په وړاندې د یوه موازي نظام په حیث مقاومت کړی همدا اوس د افغانستان له نیمایي زیاتې سیمې تر واک لاندې لري.

د تېرې جنوری میاشتې په دیرشمه نیټه په افغانستان کې د بي بي سي دفتر په خپله خپره کړې سروې کې وویل چې د افغانستان په اویا فیصده اراضي طالبان ښکاره فعالیت لري‌بي بي سي وویل چې د دغې سروې معلومات یې د افغانستان په ټولو ۳۹۹ ولسوالیو کې له ۱۲۰۰ څخه زیاتو سرچینو نه ترلاسه کړي چې وروسته یې د هرې پیښې پوښتنه له ۲ تر ۶ سرچینو سره شریکه کړې چې د ټولو له لوري تائید شوې.

د بي بي سي د سروې په پایلو کې راغلي چې ۱۵۰۰۰۰۰ پنځلس ملیونه خلک په داسې سیمو کې پراته دي چې د طالبانو تر ولکې لاندې دي او یا طالبان پکې په ښکاره ګرځي او بریدونه ترسره کوي. راپور لیکلي چې طالبان په ګڼو ولسوالیو له مکمل تسلط تر څنګ په ۲۶۳ ولسوالیو کې چې دافغانستان ۶۶ سلنه خاوره تشکیلوي فعال او څرګند حضور لري.

د افغانستان دغه تر نیمایي زیاته جغرافیه چې د دې هیواد نیمایي نفوس (۱۵ میلیونه خلک) په کې اوسي زیاتره کلیوالي او اطرافي سیمي دي.

په دې سیمو کې ګڼ شمیر ښارګوټي هم شته چې واک یې د طالبانو په لاس کې دی او عام خلک په کې ورځنی کاروبار او تجارتي راکړه ورکړه ترسره کوي. خو په دې وروستیو امریکایانو او د هغوی ملګرو داخلي عسکرو د طالبانو تر واک لاندې ساحو کې د ښارګوټو او د نورو عام المنفعه تأسیساتو د منظم تخریب عملیه پیل کړې چې د تخار د شور عرب ښارګوټي تخریب یې یوه بیلګه وه.

نړول شوي بازارونهد امریکایانو او کابل حکومت لخوا د طالبانو تر واک لاندې ساحو کې (چې د افغانستان تر نیمایي زیاته اراضي تشکیلوي) د بازارونو تخریب په دې وروستیو کې زور اخیستی. په هلمند کې د سنګین بازار چې سل کاله پخوا ودان شوی و او په تیره یوه نیمه لسیزه کې یې ډیر انکشاف کړی و، کله چې په تیر پسرلي کې تري حکومتي ځواکونه اود هغوی امریکایي ملاتړي وتل، نو له وتلو سمدستي وروسته یې د سنګین ټول ښار په منظم ډول بمبار او داسې تخریب کړ چې ددې ښار په زرګونو دوکانونه، مارکیټونه، مساجد، حکومتي ودانۍ او نور تاسیسات یې له خاورو سره برابر کړل. د سنګین بازار د منظم او قصدي تخریب په پایله کې د سنګین د قومندانۍ هغه تاریخي ودانۍ هم له منځه لاړه چې په افغانستان کې د نیمې پیړۍ پخوا شاهي نظام دوخت میراث و او تاریخي اهمیت یې درلود. امریکایانو په دې بمبار سره په سنګین بازار کې ټول هغه دیوالونه بیرته ونړول چې په تیرو څو کلونو کې یې دلته د ولایتي بیارغونې د پروګرام له مخې جوړ کړي وو. له سنګین څخه د شاتګ په تعقیب د دې ښار په مکمل تخریب سره امریکایانو افغان اولس ته پیغام ورکړ چې زموږ بیا رغونه او انکشافي کارونه په دې شرط مشروط دي چې دلته به واکمني هم زموږ وي او که په کومه ورځ موږ له افغانستان څخه وځو، نو دا مو حق دی چې خپل

انکشافي کارونه او جوړ کړي تعميرات هم بيرته په لوی لاس تخريب کړو.

د سنګين د بازار له تخريب وروسته امريکايي او داخلي عسکرو په تيرو مياشتو کې په هلمند کې څو نور بازارونه هم رنګ کړل. په موسی کلا ولسوالۍ کې ښايسته بازار ته داخلي او امريکايي کوماندويان د هوا له لارې ورغلل او په شپه شپه کې يې په بمونو لوټه لوټه کړ، په ګرمسير ولسوالۍ کې دوشنبه بازار هم په ورته ډول ونړول شو. د هلمندپه جنوب ديشو ولسوالۍ کې رباط بازار د امريکايي بي دوه پنځوس طيارو لخوا بمبار او ټول دوکانونه يې تخريب شول. ياد شوي ښارګوټي چې د اولس لخوا جوړ شوي او د سلګونو ميليونو ډالرو په بيه تجارتي اموال په کې پراته و له ټول هست او بود سره له منځه يووړل شو. د دې نړول شويو ښارګوټو يوازينی جرم دا بلل شوی چې دا په هغه نيم افغانستان کې واقع و چې د طالبانو تر واک لاندې دی.

## تخريب شوي روغتونونه

د طالبانو تر واک لاندې نيم افغانستان کې يوازې بازارونه په تخريب نه دي محکوم، بلکې کلينکونه او روغتيايي مراکز هم د امريکايانو لخوا د اشد مجازات (تخريب) وړ بلل کيږي.

د وردګو ولايت د تنګي دره له تيرو لسو کلونو راهيسې د طالبانو تر واک لاندې ده، د دې سيمې خلک غريب بزګران دي. د سره صليب موسسې د دې سيمې د خلکو لپاره کلينک جوړ کړ تر څو خلکو ته لومړنۍ مرستې، واکسينونه او طبي خدمات عرضه کړي. خو يوه شپه امريکايي او افغان کوماندويانو ناڅاپه په دې کلينک چاپه ووهله، د کلينک طبي سامانونه يې څه تخريب او څه چور کړل او د روغتون وداني يې په بمونو والوځوله.

د وردګو ولايت په جلګه ولسوالۍ کې تير پسرلي په ورته ډول يو بل کلينک هم څکه ونړول شو چې د طالبانو تر واک لاندې سيمې عامو خلکو ته يې طبي خدمات رسول.

د پکتيکا ولايت ګيان ولسوالي يوه له هغو غرنيو سيمو څخه ده چې واک يې د طالبانو په لاس کې دی. يوې خيريه مؤسسې په دې سيمه کې د اولسي خلکو لپاره روغتون جوړکړ، خو امريکايي او داخلي عسکرو په سيمه کې دعملياتوپه مهال د سيميز بازار دوه ساتونکي ووژل او کلينک يې په بمونو والوځاوه.

باد غيس ولايت دافغانستان يوه له هغو سيمو ده چې خلک يې تر نورو ډېر غريبانه ژوند لري. د دې سيمې خلک حتی لومړنيو طبي خدماتو ته هم لاسرسی نلري. يوې خيريه مؤسسې د بادغيس، د غورماچ ولسوالۍ د تيز ناوې په سيمه کې د عامو خلکو د علاج لپاره روغتون جوړ کړی و چې د امريکايي الوتکو لخوا د نامعلومو دلائلو په اساس بمبار، يو ساتونکی يې قتل او کلينک په بشپړ ډول له منځه يووړل شو.

## هلته چې له ښوونځيو پوستې جوړې دي

د افغانستان د نيمايي نفوس (هغه چې د طالبانو تر واک لاندې ساحو کې ژوند کوي) بله ستونزه دا ده چې کله حکومتي عسکر په دې سيمو کې عمليات وکړي او کومه سيمه نيسي، نو د سيمې ښوونځي، مدرسې او تعليمي ادارې په پوستو بدلوي. د کندهار ښار په ګاونډ کې د پنجوايي، ژړۍ او ارغنداب ولسوالۍ چې پخوا د طالبانو تر واک لاندې وې، کله چې دا سيمې حکومتي ځواکونو ونيولې، نو خپل محلي پوليس (اربکيان) يې په هغو ښوونځيو کې ځای په ځای کړل چې پخواپه کې د سيمې ماشومانو درس وايه.

په دې ولسواليو کې تر ۳۰ زيات ښوونځي په امنيتي پوستو بدل شوي دي. د حکومت د امنيتي ادارو مشران دليل وايي چې دوی په دې سيمو کې د نويو پوستو او پوځي تاسيساتو لپاره لازمه بوديجه نلري نو ځکه له ښوونځيو کار اخلي. دغه راز



ځرنګه چې د اکثره ښوونځیو ودانۍ پخې جوړ شوې او د سپکو وسلو د مرمیو په وړاندې مقاومت لري حکومتي عسکر د خامه ودانیو په نسبت د ښوونځیو پخو ودانیو ته ترجیح ورکوي. خو ددې کار منفي نتیجه دا ده چې له امله یې په لسګونو زره ماشومان له خپل اساسي حق (زده کړو) څخه بې برخې پاته کیږي. دا چې همدا اوس د هیواد په جنګي سیمو کې د بې سوادۍ کچه زیاته ده یو علت یې همدا بلل کیږي چې دماشومانو ښوونځي حکومتي عسکرو او ملیشو اشغال کړي دي.

وروستۍ خبرهد حکومتي قواوو او د هغوی دامریکایي ملاتړو لخوا په منظم ډول د طالبانو تر واک لاندې ساحو کې د بازارونو او کلینکونو نړول او د ښوونځیو په وړاندې نامسؤلانه چلند د دې ښکاره نښې دي چې امریکایان او د افغان حکومت چاروکي د افغانستان د هغه نیمایي اولس حقوقو ته کومه اعتناء نلري او نه هم دهغوی لپاره د ژوند، رفاه او اقتصادي انکشاف هغه حقوق په رسمیت پیژني چې دوی وربانديې په خپلواعلامیو او تبلیغاتو کې ټینګار کوي.

بازار، کلینک او ښوونځی که هر ځای او د هر چا تر واک لاندې ساحه کې وي، د اولس مال دی او د عام المنفعه تاسیساتو له جملې بلل کیږي. د ددا ډول تاسیساتو نړول په حقیقت کې د اولس په مرۍ پښه ایښودل او له اولس څخه د ژوند حق اخیستل دي.

د حکومتي واک له ساحې بهر د هیواد هغه نیمایي نفوس چې دنړیوالو د میلیاردونو مرستو له جملې ورته لږ اندازه هم نه ده رسیدلې، اقلا دا حق خو لري چې دخپلو متوپه زور او خولو په تویولو ځان ته دوکان او بازار جوړ کړي تر څو ځان او خپل اولاد ته یوه ګوله ډوډۍ پیدا کړي.

د اولسي خلکو د بازارونو نړول او د ژوند داساسي اسانتیاو ترې اخیستل په دې علاوه چې یوه غیر دیني او غیر ملي کړنه ده بلکې د انسانیت په لحاظ هم نامشروغ او حتی ظالمانه عمل بلل کیږي.

که د هیواد په لر اوبر کې تر بیلابیلو تورونو او عنوانونو لاندې داولسي خلکو د دوکانونو، ښارګوټو او کلینکونو د تخریب عملیه ونه درول شي نو دا به د افغانستان د غریب اولس ستونزې نورې هم زیاتې او د سترو اولسي غمیزو لامل به وګرځي.

# د اَسیا نابغه

# علامه شمس الحق افغاني رحمه الله

## ژوند ته لنډه کتنه

ژباړه او راټولونه: عزت الله کوټوال

د ده په اړه د دارالعلوم دیوبند مهتمم قاری محمد طیب رحمه الله فرمایلي: " ما په ټوله اسیاء کې د افغاني په څیر عالم ندی لیدلی" .

شیخ افغاني په ۱۷ د رمضان المبارک ۱۳۱۸هـ چې د۱۹۰۰ء سره سمون خوري په کوزه پښتونخوا پیښور ته نیږدې د چارسدې په تاریخي علاقه ترنګزو کې د مولانا غلام حیدر بن مولانا خان عالم ابن مولانا سعد الله په کور کې چې یو علمي او پښتنه کورنۍ وه، وزیږید.

### ابتدائي زده کړې:

ابتدائي تعلیم یې د خپل والد صاحب څخه حاصل کړی، په ۱۹۰۹ء کې یې په ښوونځي کې داخله وکړه او په ۱۹۱۳ء کې تری فارغ شو، له دې ورسته یې د خیبر پختونخوا او د افغانستان له مختلفو علماء کرامو څخه د اسلامي فنونو کتابونه وویل.

### لوړې زده کړې:

په ۱۹۲۰ء کال د لوړو زده کړو لپاره یې د هندوستان سترې مدرسې (دارالعلوم دیوبند) کې داخله واخیسته او په ۱۹۲۱ء کې یې د دارالعلوم دیوبند څخه د دوره حدیث په کولو فراغت وشو او علم طب یې هم دارالعلوم کې زده کړ.

په ۱۹۲۲ء کې ورته دحج کولو سعادت هم په نصیب شو.

### مشهور استادان:

د نوموړي له استادانو څخه مشهور عالم دین د وخت محدث علامه انور شاه کشمیري، علامه شبیر احمد عثماني، سید اصغر حسین، مولانا رسول خان هزاروي وغیره شامل دي.

### تدریس:

په ۱۹۲۳ء کې په مدرسه مظهرالعلوم کراچي کې صدر مدرس مقرر شو.

په ۱۹۲۴ء کې په مدرسه ارشاد العلوم لاذکانه سند کې صدر مدرس ؤ.

په ۱۹۴۸ء مدرسه قاسم العلوم لاهور کې د صدر مدرس په توګه تدریسي خدمات انجام کړل.

په ۱۹۳۲ء دارالفیوض سند کې صدر مدرس مقرر شو.

په ۱۹۳۳ء څخه تر ۱۹۳۹ء پورې دارالعلوم دیوبند کې د درجه علیا لپاره استاد او شیخ التفسیر وو.

۱۹۴۴ء جامعه ډابهیل کې د صدر مدرس په حیث مقرر شو.

۱۹۶۳ء په جامعه اسلامیه بهاولپور کې د شیخ التفسیر په منصب وټاکل شو او تقریبا ۱۲ کاله پورې یې تدریسي خدمات انجام کړل.

نوموړی د پاکستان له جوړیدو مخکې د قلات د قاضي او د معارف وزیر هم پاتې شوی او هلته دده او ملګرو په محنت د (وفاق المدارس العربیة) په څیر ستره اسلامي اداره جوړه شوه چې لومړی صدر یې افغاني وو او دده په کوښښونو یې ډیره کامیابي حاصله کړه.

### بیعت او اجازت:

نوموړي د حکیم الامت علامه محمد اشرف علي تهانوي رحمه الله سره په تصوف کې بیعت کړی او د حضرت مفتي محمد حسن امرتسري (باني جامعه اشرفیه لاهور) خلیفه مجاز دی.

او ویل کیږي چې د افغاني لقب ورته د خپل استاد محدث العصر شیخ محمد انور شاه کشمیر رحمه الله له لورې ورکول شوی.

### تصانیف:

علامه افغاني رحمه الله ډیر اهم او مفید کتابونه لیکلي چې یو څو مشهور یې دا دي:

۱ علوم القرآن (اردو، پښتو او دري ژباړه)

۲ سوشلزم اور اسلام

۳ معین القضاة و المفتیین (عربي)

۴ شرح ترمذي (عربي)

۵ عالمی مشکلات اور ان کا قرآنی حل

۶ تصوف اور تعمیر کردار

۷ اسلامی جهاد

۸ کمیونزم اور اسلام

۹ احکام القرآن

۱۰ مفردات القرآن

۱۱ مشکلات القرآن

۱۲ اسلام اور سائنس

۱۳ شرح دیوان ضابطه

۱۴ مکتوبات افغاني

او داسې نور د یادوني وړ دي.

### ستري کارنامې:

① د دار العلوم دیوبند له طرفه (شهر دهانند) ته د ارتداد د فتنې او (شدهی تحریک) لپاره چې کوم ۵۰ پنځوست مبلغین لیږل شوي وو، د هغو مشر او آمیر علامه افغاني صاحب وو، دده تبلیغي هڅو رنګ راوړ، برآې نام مسلمانان د ارتداد څخه وژغورل شو او بې شمار هندوانو هم دلته اسلام قبول کړ.

د دوی مشهورو مناظرینو ته یې لویه ماتي ورکړه، کله چې یې د ارتداد د فتنې په ختمولو کامیابي حاصل کړه نو دارالعلوم دیوبند ته راستانه شول او په دارالعلوم دیوبند کې په همدې مناسبت یوه لویه اجتماع جوړه شوه چې د وخت ستر محدث علامه محمد انور شاه کشمیري نورالله مرقده او علامه شبیر احمد عثماني رحمه الله هم تشریف راوړی وو.

ددې بزرګانو په غوښتنه علامه افغاني رحمه الله د خپل تبلیغي کارګزاری په اوریدلو سره یو داسې جامع تقریر هم وکړ چې ددې بزرګانو سینې پرې یخې شولې او علامه افغاني ته یې دعا وکړه.

نوموړي له دې څخه علاوه د عصري علومو طبقې ته هم په دعوت او اصلاح کې ډیر کوښښ کړی.

د یو کال په موده کې یې د دارالعلوم دیوبند په کتابتون کې د نادرو کتابو مطالعه هم وکړه. همدارنګه د قیام حجاز په دوران کې یې هم د سلطان عبدالحمید خان په مکتبه (حمیدیه) کې پراخه مطالعه وکړه.

### ② د بخاري شریف تدریس:

کله چې د متحده هندوستان په ډابهیل دارالعلوم کې د وخت عظیم محدث او امام علامه محمد انور شاه کشمیري رحمة الله علیه وفات شو نو د احادیثو د تدریس لپاره علامه شبیر احمد عثماني رحمة الله علیه د بخاري شریف تدریس په ۱۹۴۴ء کې افغاني رحمة الله علیه ته او د ترمذي شریف تدریس یې علامه محمد یوسف بنوري رحمةالله علیه ته ورکړل.

په دغه وخت کې د شبیر احمد عثماني رحمه الله دوه نور مشهور علماء کرام نائبان وو، دوی دواړو شبیر احمد عثماني صاحب ته وویل چې موږ ستا نائبین یو او بهتره به وي چې د بخاري شریف د تدریس منصب موږ ته وسپارلی شي.

علامه شبیر احمد صاحب ورته وویل:

آیا تاسو یې له افغاني صاحب ښه تدریس کولی شئ؟

دوې وویل هو!

علامه شبیر احمد صاحب ورته وویل راځئ چې هلته ورشو.

کله چې دوی ډابیل دارالعلوم ته راغلل نو د افغاني رحمه الله درس پای ته ورسید، خو علامه افغاني صاحب په دوی پوه شو نو شاګردانو ته یې وویل نور درس هم کوو.

شاګردانو ته یې د دوی په وړاندې درس پیل کړ او په درس کې یې ښه په پوره ډاډ او اطمینان کلام شروع کړ، تر دې چې د لاندې علماء کرامو په رایو یې واضح کلام وکړ لکه:

د کرماني رایه او دده تردید،

د ابن منیر رایه او د ده تردید،

د ابن بطال رایه او د ده تردید،

تر دې چې د حفاظ ثلاثه ابن حجر، قسطلاني او عیني رایې او د دوی تردید آن تر انورشاه کشمیري رحمه الله او دده ځینې رایې او د هغوی تردید، یعني ښه په پوره قوت سره یې د دوې رایې سره وڅیړلې او بیا یې له دې څخه وروسته نوي دلایل قایم کړل.

ځکه چې دی په مضامینو کې د خپل وخت امام وو او داسې وضاحت به یې په مضامینو کې کاوه چې بلکل به یې په مضامینو کې کوم شک نه پاتې کیدل. تردې چې پوره دوه ګینټې یې نور هم درس وکړ.

د درس تر ختمیدو څخه وروسته علامه شبیر احمد عثماني وفرمایل:

چې په خپل ژوند کې مې د افغاني په څیر د بخاري شریف مدرس نه دی لیدلی. بیا یې افغاني رحمه الله د مدرسینو مشر هم وټاکه.

### ③ د افغاني رحمه الله کتاب علوم القرآن:

په اسلامي نړۍ کې د عظیم الشان کتاب قرآن لوی لوی مفسرین تیر شوي او هر یو په خپل ځای د علم ستر ستر بحر دی د دوی تفاسیر د اسلامي علومو او کتابونو سرچینه ده لکه لاندې تفسیرونه:

تفسیر طبري، تفسیر قرطبي، تفسیر ابن کثیر، تفسیر کبیر، تفسیر روح المعاني او نور...

د تفاسیرو څخه علاوه ځینو علماو د قرآن کریم په علومو هم کتابونه لیکلي لکه:

د علامه جلال الدین السیوطي رحمه الله کتاب (الاتقان فی علوم القرآن)، د امام زرقاني رحمه الله کتاب (مناهل العرفان فی علوم القرآن) او داسي نور...

د معاصرو علماو څخه علامه شیخ القرآن شمس الحق افغاني رحمه الله هم د عظیم الشان کتاب په علومو یو منل شوی او مفید کتاب د اوسني عصر په نظر کې نیولو سره لیکلی، په دې کتاب کې پر لاندې مضامینو تحقیقي بحث شوی دی:

### ❒ ضرورة القرآن:

انسانانو ته د قرآن عظیم الشان او وحي الهي په ضروریاتو عقلي او فلسفي دلایل.



**❐ صداقة القرآن:**

د الله جل جلاله له طرفه د قرآن عظيم الشان د نزول اثبات او په معجز کيدو يې عقلي دلايل او د اروپا د مستشريقينو ترديد.

**❐ تنزيل القرآن و تدوينه:**

د قرآن د نزول او د قرآن د راټوليدو او جمعې تحقيق.

**❐ محفوظية القرآن:**

د قرآن د حفاظت دلايل او د مستشرقينو د شبهاتو ترديد.

**❐ مهمات القرآن:**

د قرآن د مهمو مقاماتو حل، حکم او اسرار يې او د شبهاتو ازاله.

**❐ احکام القران:**

د قرآن عظيم الشان فقهي احکام، حکمت يې او د وخت د شبهاتو جوابونه.

**❐ تعبيرات القران:**

د قراني تعبيراتو حقيقي حل، پداسې ډول چې صحيح مطالب قرآني معلوم شي او د جديد خيالو ليکوالانو خامياني واضحه شي.

لومړي پنځه بابونه دعلوم القرآن په موضوع نومول شوي. نور ګڼور او مفيد معلومات هم په کې زخيره شوي دي.

دغه کتاب په اردو ژبه دی، پښتو ته مولانا سيف الحنان حقاني په پيښوري لهجه ژباړلی چې په ۳۳۷ صفحو شامل دی، فارسي ته شيخ محمد انور بدخشاني صاحب ژباړلی دی.

شيخ افغاني رحمه الله په دې کتاب کې د اصطلاحي تعبيراتو څخه کمه استفاده کړې. ډير يې د جديدو نظرياتو پر بناء داسې قلم اوچت کړی چې د اسلافو د اسلوب څخه هم بهر ندی او کوم معارف او حقايق چې يې تشريح کړي هغه يې هم په خپل ځای کې د سلفو د مسلک د تايد پر بناء ليکلي نه د تحريف.

ددې نه علاوه لکه څنګه چې اوس د عقليت او فلسفې عصر دی، نو ددې وجې يې په مقاصدو شرعيه او نقليه کې کتاب په عقلي او فلسفي رنګ کې مرتب کړی او هم يې د غرب څخه متاثرو خلکو ته د هدايت او لارښود پر بناء قلم اوچت کړی دی.

④ د علامه شمس الحق افغاني رحمة الله عليه په هکله مفتي محمد زرولي خان صاحب فرمايي چې ده رحمه الله تفسير کبير (د امام فخرالدين الرازي رحمه الله) مکمل څلور جلده حفظ کړی وو. (دوره تفسيرالقرآن، ۲۰۱۶_ رمضان المبارک، مقدمه د تفسير).

علامه افغاني صاحب د نړيوال شهرت خاوند او د بزرګانو يادګار دی چې د خپل وخت لوی عالم، مفسر، مدبر، محقق او عارف وو. شيخ د ډيرو ديني مجلسونو او مدارسو سرپرستي کړې.

**وفات:**

بل آخر د اسلامي نړۍ دغه ځلانده ستوری په ۱۶ اګست ۱۹۸۳ء نيټه له دې فاني نړۍ څخه رحلت وکړ او په چار سده کې خاوروته وسپارل شو.

الله جل جلاله دې پرې رحمتونه نازل کړي.



# د سیکولرانو د اعتراضونو ځینې ځوابونه

لیکنه: عـ عزام

اکـــثره وخـــت ســـیکولران زمـــوږ پـــه مقـــدس جهـــاد اعتراضونه او نیوکې کوي، ترڅو زموږ عـوام النـاس ورونـو ته ذهنو کې شکوک کړي، چې یې په لاندې ډول دي:

① هغوي وایې د نوح علیه السلام زوی کافر و، خـو نه یې واژه!

② دا هم وایي چې د لوط علیه الـسلام ښـځه کـافره وه، خو نه یې وژله!

③دا هم وایې چې د رسول الله صلی الله علیـه وسـلم تره ابو طالب کافر و، خو نه یې واژه!

④او دا خبره خو یې بیخـې لا ګرمـه کـړې ده وایـې محمد صلی الله علیه وسلم ټول منافقین پېژندل، خو نه یې وژل!

⑤اوس په دې نه پوهېږم چې ولې طالبـان حکمتـې چار واکی وژني؟

ځوابونه:

اول خو دی ته راشه چې هغوی ولی هغه دغه کسان نه وژل؟

د جهاد مطلب اومقصـد دا دی، چـې پـه ټولنـه کـې د فساد او فتنه ختمه شي، او د الله جَلَّجَلَالُهُ بندګان پـه ارامـه او سوکاله په فضاء کې ژوند وکړي.

ځینـې مفسـدین اوفتنـه ګـر خلـک چـې نـه اصلاح کېږي، او په ځمکه کې فساد کې د هغوی ختمول اړین دي، دا ډول مفسـد وګـړي الله جَلَّجَلَالُهُ کلـه پـه خپلـو عـذابونو باندې له منځـه وړي او هلاکـوي یـې، او کلـه یـې د خپلـو ځینو نورو صالحو او مؤمنو بنده ګانو لخـوا د مقـدس جهـاد په ترڅ کې ختموي او ټولنه ورځخه پاکوي.

یو څو بېلګې یې په لاندې ډول دي:

①د نوح –علیه الـسلام - زوی یـې پـه طوفـان کـې هلاک کړ.

②د لوط – علیه السلام - ښځه یـې لـه نـورو کفـارو سره په داسې عذاب کې هلاکه کړه، چې په ټولو یې ځمکه په بل مخ واړوله.

③رسول الله چې خپل تره ابـو طالـب نـه واژه، هغـه ځکه چـې نومـوړي د اسـلام او مسـلمانانو پـه وړانـدې نـه خنډونه نه جوړرول، او مسلمانانو تـه یـې کـوم زیـان نـه و اړولی، که څه هم هغه وخت جهاد نـه و فـرض شـوی، خـو نوموړي د اسلام د پرمختګ هیـڅ مخینوی نه و کړی.

همدارنګه د رسول الله صَلَّىٰٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ یو تـره ابـو لهـب چې د اسلام او مسلمان لپاره هر ډول سـتونزې او مشـکلات جـوړرول، او ډېـر مضرـ او خطرنـاک و، نـو الله جَلَّجَلَالُهُ پـرې مرض ولګاوه او مړ شو.



④او دا خبره چې رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خو منافقین پېژندل خو نه یې وژل، د دې وجه په لاندې ډول وه:

(اول) هغه وخت کې اسلامی نړۍ تازه پیل شوې وه د جهاد حکم نه و راغلی.

(دویم) امام مالک رحمه الله په دی اړه فرمایي: په هغه وخت کې د مسلمانانو کمې وه که چرته رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه منافقین وژلی وای نو بیا به کفارو او مشرکینو هغه کسانو ته ویل چې هغوی تازه اسلام قبلاؤ چې گوری اسلام مه راوړئ ځکه چې رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه نورو خپلو ملگرو پوری تنگ راغلی او وژني یې، نو که تاسو هم ایمان راوړئ کیدای شي چې تاسو هم ووژني.

⑤ اوس په دې نه پوهېږو چې ولې طالبان حکومتي چار واکی وژني؟

د دی لپاره خو بی حده زیات دلایل دي، که زه یې په لیکلو پیل وکړم، نو پرې ستړی به شم، او ته به یې په لوستلو ستړی شې، خو صرف له قرآن کریم څخه به درته دوه واضحه دلایل ذکر کړم او همدارنگه به درته دوه نقلی اوعقلی دلایل هم ذکر کړم، نو که په سر کې دې لک شانتې عقل وي، نو وربانديې پوی به شي!

له قرآن کریم څخه دلایل:

(۱) يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلْيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ ۘ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ [سورة المائدة: ٥١]

ژباړه: اې مؤمنانو! یهودیان او عیسویان خپل ملگري مه نیسئ، دوی په خپلو منځو کې سره ملگري دي. او که له ستاسي څخه څوك هغوی خپل ملگري نیسي- نو بیا هغه هم په هماغو کې شمېرل کیږي. په دې کې شك نشته چې الله ظالمان له خپلې لارښوونې څخه بې برخي کوي!

نو ځکه یې وژني چې:

(۲) لَّا يَتَّخِذِ ٱلْمُؤْمِنُونَ ٱلْكَٰفِرِينَ أَوْلِيَآءَ مِن دُونِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۖ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ ٱللَّهِ فِى شَىْءٍ [سورة آل عمران: ٢٨]

ژباړه: مؤمنان دي هیڅکله داسې نه کوي چې مؤمنان پرېږدي او له کافرانو سره ملگرتیا او دوستي وکړي. څوك چې داسې چلند وکړي، د هغه له الله سره هیڅ اړیکه نشته.

او داهم نقلی او عقلي دلایل:

(۱) طالبان ځکه حکومت چارواکیزوژني چې دوی د هیواد په اشغال کې له کفارو سره مرسته وکړه نو په دې ظلم کې شریک او همغږي او دهیواد پر اشغال باندې راضي دي.

تاسو وینئ چې د دوی مرسته اوملگرتیا له کفاروسره د دې باعث ده چې د هیواد اشغال او پرافغانانو باندی ظلم وحشت او بمباري دوامداره شوه.

(۲) طالبان ځکه حکومتي چارواکی وژني چې دوی اشغالگر ځواکونو سره یو ځای د مجاهدینو په وړاندې جنگېږي، او په هیواد کې غربی کلتور اوعنعنات رائج کوي او د اسماني قانون پرځای کفري قانون پلي کوي.



## بهرنۍ سفارتخونې؛

# د بدمرغيو ځالې

احمد ياسر

غربي ځواکونه چې د امنيت راوستلو په بهانه په افغانستان کې پراته دي، په حقيقت کې نا امني د دوی له شتونه سرچينه اخلي.

دوی يوائې هغه امنيت ته ژمن دي چې په ترڅ کې يې د ښکېلاکګرو سفارتخونې، ډيپلوماټيک مرکزونه، د جاسوسۍ مراکز او پوځي اډې خوندي وي. خو دا چې افغانان دې په سوله او امن کې ژوند وکړي، دا يوائې يو خيال او خوب دی چې د بهرنيو ځواکونو په شتون کې يې هيڅ تعبير شتون نه لري. ځکه همدغه استخباراتي ځالې دي چې په دغو بدمرغيو کې مستقيم لاس لري.

لاسپوڅي حکومتونه او د اسلامي خاورو چارواکي ځان غربي چارواکو ته د ژمن ښودلو لپاره په هر ډول ظلم او وحشت خوله پټوي. سره له دې چې د بې ګناه خلکو د وژلو چغې په خلاصو غوږونو اوري، خو لاسپوڅي چارواکي اوږه په اوږه د بې ګناه خلکو په وژنه کې له ښکېلاکګرو سفارتخونو سره مرسته کوي.

داعش او نورې ډلې چې د مسلمانانو وينې تويوي او د مسلمانانو په وژلو يې زړه نه يخېږي، د امريکا د پروژې يوه برخه ده چې د سفارتونو لخوا ورسره مرسته کوي او د دوی د مرستو او مديريت په پايله کې هره ورځ سلګونه مسلمانان د دوی په وحشيانه بريدونو کې وژل کېږي.

له امريکا سره د افغان دولت امنيتي تړون او د امريکا نوې امنيتي تګلاره په افغانستان کې د افغانانو په ګټه نه، بلکې د امريکايي ګټو د خونديتوب لپاره دي، تر څو وکولای شي چين او روسيه چې امريکا يې خپل سيالان بولي، مهار کړي، او دوه سيمه يز اټومي قدرتونه پاکستان او هند په سيمه کې په جګړو کې ښکېل او يا يې تر کنټرول لاندې ولري.

تر څو چې په اسلامي خاورو کې ښکېلاکګر ځواکونه، د هغوی پوځي اډې او استخباراتي ځالې شتون ولري، د شته بدمرغيو لړۍ به دوام لري وژنې بمي بريدونه او بمبارۍ به ورځ تر بلې مخ پر ډېريدو وي.



# عسکره!

## ترڅو به وژل کېږې!

لیکنه : عبدالله عزام

سرتېریه که خبرې مې اورې نو په سره سینه او د زړه په غوږو یې واوره!

ګوره دا ۱۷ کاله کېږي چې په جګړه کې راسره ښکېل یې.

۱ـ ستا جګړه د چا لپاره ده؟

۲ـ ته د چا لپاره قرباني ورکوې؟

۳ـ ته د چا په مقابل کې جګړه کوې؟

۴ـ او دا جګړه ولې او د څه په خاطر کوې؟

۱ـ زه پوهېږم چې د چا لپاره جګړه کوې. ۲ـ په دې هم پوهېږم چې د چا لپاره قرباني ورکوې. ۳ـ په دې خو مې ښېخې سر خلاص دی چې د چا په وړاندې په جګړه بوخت یې.

خو دا د ۴ مې پوښتنې ځواب به ته راته وایې چې جګړه ولې او د څه په خاطر کوې؟

نو ستا ځواب به ضرور داوي چې د ترهګرۍ په ضد او دوطن د دفاع په خاطر جګړه کوم.

نو اوس د خپل ځواب؛ ځواب هم واوره!

اول خو ته ترهګر هم نه پیژنې، ترهګر هغه څوک دی چې له ما او تا څخه یې د حکومت حق وړی وي،

ترهګر هغه څوک دی چې د اسلام مقدساتو ته توهین کوي،

ترهګر هغه څوک چې له کیلو متړونو-کلیو متړونو لرې هیوادو څخه راځي او بې ګناه افغانان وژني.

او بله دا چې د وطن دفاع خو د پردیو څخه کېږي، چې په وطن یې یرغل کړي او اشغال کړی یې وي.

زه او ته خو د یو وطن، یو ولایت، یوې ولسوالۍ او د یو کلي یو.

د وطن دفاع خو له پردیو څخه کېږي نو خلاصه به یې درته ووایم چې ته د ترهګرۍ پر ضد نه، بلکې د اسلام پر ضد جګړه کوې،

ته د وطن د دفاع په خاطر نه، بلکې د یو څو ډالرو په خاطر جګړه کوې.

سرتېریه! ترڅو به وژل کېږې؟ یو ځل نه، په سل هاوو ځله نه، بلکې په زر هاوو ځله ووژل شوې.

که دې په یاد شي، ستا تر ۵۰۰ ملګرو دې په شاهین قول اردو کې ووژل شول.

که دې په یاد شي، ستا تر ۴۴۰ ملګرو دې د پکتیا په ګردېز کې ووژل شول.

که دې په یاد شي، د قندهار میوند او خاکریز په ولسوالیو کې دې د یو کنډک او د یوې قرارګاه ملګري ووژل شول چې شمېره یې تر ۱۳۰ تنو پورې رسېدله.

که دې په یاد شي ستا تر ۵۰ پورې خارجي او داخلي مشران، د کابل په انټرکانټیننټل هوټل کې ووژل شول.

دا خو مې د بېلګې په ډول درته د ځینو پېښو یادونه وکړه چې ستا ملګري پکې وژل شوي دي، نو ګوره! ضرور به یوه ورځ ته هم وژل کېږې!

زارۍ هم نه درته کوم، نو که غواړې چې ونه وژل شې او دنیا او اخیرت دواړه دې خراب نه شي، نو زما دا دوه خبرو ته غوږ کېږده!:







(۱) راشه د اسلام لارویانو ته تسلیم شه، هغوی به تا ته ښه راغلاست ووایي او ستا ګرم هرکلي به وکړي او که دا نه شې کولی،

(۲) نو دا کار خو وکړه چې دا کوم ټوپک دې چې په لاس ک دی، چا چې درکړی دی، هغه ته یې ورخطا کړه، الله ﷻ ته توبه وباسه او په کور کښېنه.

او که دا دریم کار دې وکړ، نو څومره خوند به وکړي:

هغه دا چې دا کوم ټوپک دې چې په لاس کې دی، شپېلی یې په هغه چا ور واړوه چا چې درکړی دی.

نو بیا به ستا کار نامه او ستا مېړانه موږ تر مرګه هېره نه کړو، او د تاریخ په زرینو کرښو به ولیکل شي.

لکه څنګه چې ستا ځینو ملګرو خپلې د ټوپک شپېلی په وحشي یرغلګرو وروااړولې او مردار یې کړل.

هغه مو د تاریخ په هنداره لیکلي او تر مرګه به یې هیر نه کړو!

زه پوهېږم چې زما خبرو به لږ غوسه کړی یې، خو له غوسې نه کار مه اخله، زما په خبرو کې لږ فکر او سوچ وکړه، بیا ته پخپله قضاوت وکړه!





# د ښځو د حقوقو ستر ملاتړي،

# که پر ښځو تېری کوونکي؟

احمدم

هغه درې تنو ښځو چې ډونالډ ټرامپ يې له ټاکنو مخکې په جنسي ځورونو تورن کړی و، د روان میلادي کال د ډسمبر په (۱۱مه) نېټه يې په نیویارک کې خبري کنفرانس دایر کړ او له کنگرې څخه يې د ټرامپ جنسي ځورونو په اړه د څېړنې غوښتنه وکړه.

د بشر او ښځو د حقوقو په ستر مدافع هیواد امریکا کې د جنسي ځورونې گراف ورځ تر بلې مخ پر لوړېدو دی.

خو حیرانوونکي دا ده چې د ښځو د حقوقو د دغه ملاتړي هېواد مشران هم د ښځو په جنسي ځورونه روږدي دي.

له سیاسته تر سینما پورې د امریکا او نورو غربي هیوادونو مشران د جنسي خورونو په پېښو تورن شوي دي.

ټرامپ د امریکا لومړی ولسمشر نه دی چې پر ښځو د جنسي تېري په تور تورن دی.

بلکې تر دې مخکې د امریکا نور ولسمشران لکه بل کلنټن د خپل دفتر پر یوې کارمندې او پلار جورج بوش پر یوې فلمي لوبغاړې باندې د جنسي خورونې په اړه هم تورن شوي دي.

څنگه شونې ده چې هغه هېواد چې ولسمشران يې پر ښځو جنسي تېری کوي، د بشر او ښځو د حقوقو ملاتړ دې وکړي؟

د بشر حقوق او ښځو حقوق هغه درواغجن شعارونه دي چې ښکېلاکگر غرب ورڅخه د ښکېلاک د وسیلې په توگه استفاده کوي؛ که نه په اصل کې همدغه هېوادونه او د دوی په واسطه لېږدېدونکې ایډیولوژي ده چې د بشر اخلاق فاسدوي او پر ښځو د جنسي تېري لپاره زمینه برابروي.

پانگواله ایډیولوژي چې نړۍ يې له ډول ډول ناخوالو سره مخ کړې، له اقتصادي ډگره نیولې تر سیاسي او ټولنیز ژونده يې بشریت په ستونزو کې ښکېل کړی. د ډیموکرسۍ تر چتر لاندې حاکمو نظامونو نه یوازې اقتصادي او امنیتي ستونزې زېږولې، د دې سربېره يې د ښځو او کوچنیانو ژوند هم له خطر سره مخ کړی.

د جنسي ځورونو په اړه د سروې گانو شمېرې ښيي چې پر ښځو او کوچنیانو د جنسي تېري تر ټولو ډېرې پېښې په هغو هېوادونو کې کیږي چې ډیموکراسۍ ته تر ټولو ډېر ژمن دي، لکه امریکا، هندوستان، بریتانیا، فرانسه او نور.

د اسلامي خاورو مشران هم په لوی لاس د اخلاقي، ټولنیز او اقتصادي فساد جرړه (پانگوالي نظام) له غرب څخه اخلي او په اسلامي خاورو کې يې پر مسلمان ولس باندې د تعمیل او تحمیل په هڅه کې دي.

دوی هڅه کوي چې مسلمانان د ښځو او بشر د حقوقو په دروغجنو شعارونو باندې وغولوي؛ سره له دې چې پوهیږي چې د غربي هیوادونه مشران چې د دغې ایډیولوژۍ حامیان دي، پخپله تر ستونې پورې په اخلاقي فساد کې ډوب دي او پر ښځو باندې د جنسي تېري په اړه تورن دي



# جهاد دانساني عاطفي غوښتنه نه؛
# بلکې د الله تعالی امــر دی!

افغان غازي

د اوسني دور ډېر مسلمانان د جهاد غونـدې مسـئلو سره عـاطفي برخورد کوي. مثلا وايي نـوره جګـړه بس ده، تر څه وخته به وژل کېږو؟

تر څه وخته به بې کوره یو، تـر څه وخته به غمونه ګـالو او او او دا ټولې خبرې د انساني عـاطفې څخـه سرچينه اخلي، ځکـه خـو د (اصـول الفقه) علماء وايي چې جهـاد قبـيح لنفسه او حسـن لغيـره عمـل دی، يعنی د خپل ذات او اصل له مخـې بد او د غير يعنی د اعلاء کلمـة الله له وجهی ښـه او غـوره عمـل دی. د دې لپاره چې د جهاد پـه اړه پـه لنـډ ډول پوه شو، لازمـه ده چـې پـه دې اړه صرف د الله تعالی حکم ته غـاړه کېږدو. لوی الله چې ټول مخلوق يې عيال بلل شوی، له هرچا زيـات پـه خپل مخلوق مهربانه دی لـه هرچـا زيات د امورو پـه عاقبـت عـالم او خبيـر دی. هغـه ذات مؤمنانوتـه د جهاد د فرضيت او په دې لاره کې د زړه ناړه نه کيـدو پـه اړه داسـې فرمـايي: (كُتِـبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ وَعَسَىٰ أَن تَكْرَهُوا شَيْئًا وَهُوَ خَـيْرٌ لَّكُـمْ وَعَسَىٰ أَن تُحِبُّـوا شَيْئًا وَهُوَ شَرٌّ لَّكُمْ وَاللَّـهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿البقرة: ٢١٦﴾). ژباړه: پرتاسـو جهـاد فرض کړل شوی، په داسې حال کې چې دا جهاد تاسو ته بد (ناخوښه) ښـکاري، (خـو) ډېر ځله تاسو يو شی بد ايسوئ، په داسې حال کې چې هغه ستاسـو پـه ګټـه وي، او ډېر ځله بيا تاسو يو شی خوښوئ خو هغه بيا ستاسو لپـاره شر او بـد وي. (پـه دې اړه يوائې) الله تعالی پوهيږي او تاسو نه پوهيږئ. په پورته آيت شريف کې د جهاد پـه اړه الله تعالی بندګانو ته وايي چې تاسو د جهاد په عاقبت او خير نـه پـوهيږئ بلکـې الله تعالی چې دغه جهاد يې پرتاسو لازم کړی هغه په هرڅه ښه پوهيږي، يعنی جهاد د الله تعالی په علم کې ستاسو په خير ده، او که مو جهاد ونه کړ بيا به تاسو پـه زيـان کې واقع شئ.

نور که دلته له اضافه جزئياتو تير شو، د يو مسـلمان پـه ډول چـې د الله تعـالی ټولو امرونو ته امتثال لرو او پرځان يې بې له چون او چرا څخه منو بايد جهاد له خپلـو ټولو مشقتونو او تکاليفو سره ومنو او ويې کړو.

د جهاد د انجام، بريا او يا ناکامۍ په اړه موږ الله تعالی نه يو مکلف کړي، او نه هم په دې مکلف يو چې جهاد به تر يو معين وخت پورې کوو که ډېر وځنډيد بيـا بـه بله لاره نيسو. نه، که څوک ځان مسلمان بولي، د شريعت څخه خبر وي، په الله تعالی او د هغه په عالميت، قادريت، نصرت او وعدو يقين لري د هغو لپاره د جهاد په دوام او مشقاتو کې هيڅ باک نشته، هغوی جهاد د مسئوليت د رفعې لپاره کوي، په جهـاد کې د هغوی نيت صرف د اعلاء کلمة الله او د الله تعالی رضا وي.

داچې نن سبا طالبان د جهاد په لاره کې تر بل هرچا زيات سترې شوي، ځپل شوي، زمانمن شوي، بې کوره شوي، بنديان شوي، د کورنۍ غړي او خپلوان يې له لاسه ورکړي، د کفارو له سختو بې رحمه بمبارونو، چاپو، وحشتونو او تعدا سره مخ شوي، بل څوک نه دي مخ شوي، خو داچې بيا همدا ځپل شوې ډله د جهاد په دوام ټينګار کوي او يو بليست له خپل موقف څخه پر شا نه ځي، علت دادی چې د دوی د جهاد هدف او غايه معلومه ده.

دوی د جهاد په جريان سره له مخلوق سره کومه معامله نه لري، بلکې د خالق جل جلاله سره يې معامله ده، د هغه سبحانه وتعالی رضا يې هدف او هيله ده، د الله تعالی لپاره ځان، مال، خپلوان او ټول ژوند قربانول يې آرمان دی، نو ځکه يې څوک له خپلې ارادې نشي راګرځولی. زما د پورته خبرو په مطلب هغه خلک په آسانۍ سره پوهيدلی شي چې د الله تعالی په ذات او صفاتو باندې ايمان ولري او د الله تعالی په اطاعت ځان ملتزم وبولي. البته د نفاق مريضان چې نه غواړي د الله تعالی امر ته غاړه کيږدي، هغوی بيا په ښکاره او له ډاره نشي ويلی چې (العياذبالله) نه الله منم اونه يې حکم منم بلکې صرف ژوند کول غواړم او د ګيډې مړول او نفس سړول مې مقصد دی، هغوی نو دلته تأويلات کوي، خبرې اړوي را اړوي، دلائل تراشي او غواړي لمر په دوو ګوتو پټ کړي.

که تاسو دقيق شئ دا ډول خلکو په تير اوولس کلن جهاد کې هيڅ ډول ځان نه دی ستومانه کړي، بلکې له هغه اول سر څخه د جهاد مخالف وو او بيابه هم وي، ځکه دوی متمردين دي او نه غواړي د الله تعالی تابع او مطيع بنده ګان ووسي. نو ځکه د داسې خلکو، خبرې، وړانديزونه، عاطفي غوښتنې او هيلې د شريعت له احکامو سره تضاد لري او بايد ارزښت ورنه کړل شي.

## داسلامي نظام او عدالت بيلګه!

خليفه عمر بن عبدالعزيز په عراق کې خپل والي ته وليکل چې: "له بيت المال نه خلکو ته عطيې ورکړه." والي وليکل: "ټولو ته مې عطيات (تحفې) ورکړلې خو بيا هم ډير مال موجود دئ." خليفه وليکل: "وګوره که څوک پوروړئ وي پور ئې اداء کړه." والي وليکل: "د قرضدارانو تر پورونو تر اداء کولو وروسته بيا هم مال ډير دئ." خليفه وليکل: "د هر ځوان چې د واده اهل وي واده د حکومت په پيسو وکړه." والي وليکل: "د هر لائق او وړ ځوان واده مې وکړ خو بيا هم مال ډير موجود دئ." خليفه وليکل: "وګوره چې داسې کوم غير مسلمان په نظر درشي چې پر ذمه ئې جذيه پاته وي او دئ ئې په خپل زمکه او فصل سره نشي۔ اداء کولای، نو د زمکې په کرلو کې ئې مرسته وکړه." د خلافت عدل و انصاف يوازې د مسلمانانو لپاره نه وي بلکې غير مسلمان هم ترې ګټمن وي... لاندينی تصوير د دمشق د اموي مسجد سره د "بيت المال" د خزانې د هغه وخت د عمارت دې. مصدر: [تاريخ دمشق / ټوک نمبر: ۴۵ پاڼه: ۲۱۳/أبن عساکر "



## بې باکه قلم

# تر مایوسه شېبو

صفي الله "رائد"

غوښتل مې په قلم یې انځور کړم، خو د قلم نوکه مې د احساس په انځور نه نڅېده.

زړه نازړه و، سم پرې نه تاوېده.

هو! نن مې قلم احساس نه انځوراوه.

پوه شوم چې قلم مې تش په سپین کاغذ د احساس له انځور کښلو ستړی شوی، نور له تش لیکلو مایوسه شوی، نور نه غواړي د کاغذ پرمخ د احساس تش ظاهري توري انځور کړي؛ چې بیا یې خلک هسې په خوله ووایي، نور ترې تېر او بیایې هېر شي.

هو! قلم مې د یویشتمې پېړۍ خلکو ډېر مایوسه کړی، ددوی ویدو ضمیرونو او مړو احساساتو نور مات کړی؛

ځکه قلم مې احساس درلود، داحساس اهمیت ورته معلوم و، په احساس کې نغښتی اساس ورته معلوم وه.

قلم ته په سینه کې نغښتی پټ احساس معلومیده چې څومره لوړ حیثیت لري؟ څومره اهمیت لري؟

هو د یو ویښ ضمیر د احساس کیفیت ورته له ورایه برېښېده؛

ځکه چپ و، څه یې نه ویل، څه یې نه پرې لیکل.

قلم ویل: د احساس انځورول په تش کاغذ زما کار نه؛ بلکې د انسان کار دی چې باید په سینه کې یې انځور کړي،

د اوښکو له لارې یې خلکو ته وښیي او دحال په ژبه یې نورو ته درس کړي، خپله د احساس انځور وګرځي او نوروته احساس ورکړي،

داحساس درس ورکړي، تر ځان وروسته خلکو ته یې داسې درک کړي؛ چې احساس څه شی دی؟ او څنګه پیداکېږي؟

بې احساسه سړی څه وي؟ با احساسه انسان څه وي؟!!

خو له بده مرغه چې داسې نده؛ اوس هغه وخت، هغه دنیا نده.

اوس دېخوا په څېر نه خالدبن ولید شته، نه عمر بن عبدالعزیز.

اوس هغه وخت نه دی، موسم بدل دی، خلک اوس لکه مرغان د هوا بدلون سره سم دستي بدلیږي.

نه خو چا کې هاغه احساس پاتې او نه هغه ضمیر.

هو! خلکو تېر تاریخ ته شاکړې، له خپلو اسلافو تېر دي، خپل کتاب ته یې شاکړې، اوس خلکو کې هغه کمال ندی پاتې، اوس خلک هغه ښکلا نه لري، هغه احساس نه لري.

هو! دلته په ښکلا او وفا سودا وشوه، دلته ډالرو ایمانونه

ورک کړل، اف! دلته ډالرو کمالونه ورک کړل

احساس څه شی دی؟ له څه شي راټوکیږي؟ چېرته وي او له څه شي پیدا کېږي؟؟؟

احساس یوه روحي اخستنې ته ویل کېږي، احساس په حقیقت کې د یوې واقعې یو جز دی (دا په دې معنا چې احساس هیڅکله یواځې مینځته نه راځي)، احساس د وجود یوه فوري او عاجل ځواب یا عکس العمل دی چې د یوې حادثې او یا واقعې په وړاندې منځته راځي.

ځېنې خلک په دې اند دي چې احساس د انسان له پیدایښ سره یو ځای

پېداکېږي خو داسې نه ده بلکې احساس د ژوند په اوږدو کې پېژندل کېږي/ زده کېږي. دا په دې معنا چې ټولنيز، دوديز او رواني ژوند د احساساتو په پېژندلو کې ټاکلی رول لري.

طب پواهان وايي: احساس د يوې روحي اخستنې تر څنګ يو بيولوژيکي عمليه هم ده. دا په دې معنا چې کله په مغز کې د اندورفين هورمون ازاديږي، نو انسان ته د خوشحالی احساس ورپه برخه کېږي. همداسې د ادرېنالين، نورادرېنالين، کورټيزون، او پرولاکتين هورمونونه هم درد کموي او يا دا چې وجود د استراحت حالت ته راولي. کله چې د مغز حجرات ونه شي کولی زګنالونه ترانسپورت کړي، بيا د غم او عصبانيت احساسات پيدا کېږي.

احساسات ډېر ډولونه لري؛ ځنې خلک يې په څلورو برخو وېشي/ تقسيموي. خوشحالي، غم، قهر او ډار. ځينې نور بيا د مايوسی، ويارږ، حسادت، ناپېرزوينه يا بخالت، ملګرتيا، مينه، په زړه پورپوالی، اړيکې، نفرت، او بې ارزښتی هم د احساساتو په جمع کې حسابوي. خو په عمومي ډول احساسات په منفي او مثبت تقسيم شوي خو داسې احساسات هم شته چې هم منفي دي او هم مثبت، لکه هيجان، خواخوږي، بې تفاوتي او داسې نور...

# ابن سيرين رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي

## چې څلويښت کاله مې ددې ګناه د جزاء انتظار وکړ

مشهور معبرالرؤيا أو پرهيزګاره شخصيت امام محمد بن سيرين رحمه الله د مالداره أو اصحاب الغِنيٰ أو شتمنو تابعينو څخه وو، خو ټوله هستې أو جايداد يې عسل وه، ويل کيږي چې شپږسوه ټيمه عسل يې لرله چې ډير غټې قيمت يې لاره أو د روفو په حساب يې ډيري روفی جوړولې. يوه ورځ يې د عسلو و يوه ټيم ته موږک ولويد، شرعې مسئله داده چې کله موږک و بهيدونکي شي ته "چې جامد يعنې يخني نوي" ولويږي هغه به ټوله چپه کيږي، أو که جامد وو بيا موږک أو د هغه شاوخوا غورځول کيږي أو د پاته حصې څخه استفاده کيدلای شي. د ابن سيرين رحمه الله خادمانو هغه موږک له ټيم څخه وکاږه أو بيا يې و غورځاوه، خو هغوی دا ونکړه چې هغه ټيم معين أو نښانې کړي، وبالاخرة هغه ټيم ورځخه ورک شو کوم چې موږک پکښې لويدلی وو.

د ابن سيرين رحمه الله ورع أو تقویٰ بيا دا وه چې أمر يې وکړ چې ټول ټيمان بايد چپه شي، أو د ټيمانو په چپه کولو سره مفلس شو وروسته له دې چې دی د أغنياؤ أو شتمنو کسانو څخه وو، چا ورته وويل چې دا خو دې غټه خساره أو تاوان وکړ، ده ورته وويل چې دا مې جزاء د هغې ګناه وه چې ما يې څلويښت کاله د عقوبة انتظار کاوه، هغه ورته وويل چې دا څنګه ګناه وه؟ ده ورته وويل چې هغه ګناه مې دا وه چې يوه ورځ مې يو مسکين ته د هغه د مسکنت پيغور ورکړ أو ورته ومې ويل أی فقيره. أوس نو راسه زموږ پر أغنياؤ ګز کښيږده، مسکين ته د حقارت په سترګه کتل خو يې پيشه ګرځيدلې ده، خو دوی به هم ددې ګناه حساب ورکوي يا په دنيا يا په آخرت کې. ان شاءالله سبحانه وتعالیٰ رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:

(من أعار أخاه بعيب كان حقا على الله أن يوقعه فيه) که چا و خپل مؤمن ورور ته د هغه د يو عيب پيغور ورکړ پر الله جل جلاله حتمي ده چې دی به هم په هغه عيب مبتلاء کوي.....

[الطريقة المحمديه للامام البرکوي رحمه الله]



# د سي ای اې د وحشتونو یوه بېلګه

ژباړن: حیدر

د کونړ په اسعداباد کې سي آی اې له ځانګړو امریکايي ځواکونو سره په یوه پوځي مرکز کې اړولي وو. تر دې نظامي مرکز کابو درې متره لوړ ختیین دېوالونه راګرځېدلي وو. وخت ناوخت پر مرکز توغندویي بریدونه کېدل. امریکایانو به د توغندي غږ له لرې اورېده، ځکه په اسعد اباد کې له دې دوو غرونو، چې یو د نښترو د ځانګو شغار چې باد ته رپېدلې او بل د مرغانو چغار، نور شور او ځوږ نه وو.

راکټونو هدف ډېر کم ویشته، خو د امریکایانو غوسه یې ډېره راپاروله. د اسعد اباد د پوځي مرکز اصلي ارتباطي کس د کونړ والي سید فضل اکبر و. ده په امریکا کې د کالیو دوکان درلود. افغانستان ته چې راغی، نو د کرزي ویاند شو او بیا کرزي د کونړ والي کړ. والي کونړ ته خپل اتلس کلن زوی «حیدر» هم له ځان سره راوست. حیدر په کالیفورنیا کې را لوی شوی و او په روانه انګلیسي یې خبرې کولې.

د سي آی اې یو مامور د پوځي مرکز د امنیت مسوول «فرانک ارکي بالډ» ته وویل، څوک چې پر مرکز راکټونه راتوغوي، لارې ګودرې ورته «عبدالولي» نومي کس سیده کوي. امریکایانو په دې اړه والي ته وویل. د عبدالولي کلیوالو ته خبره ورسېده چې امریکایان په عبدالولي پسې ګرځي.

د جون په نیمایي کې عبدالولي له خپل ورور او قومي مشرانو سره د والي دفتر ته ورغی. هغه د کونړ والي ته وویل چې امریکایانو ته چا د ده په اړه ناسم معلومات ورکړي دي. والي ورته وویل، که دی پر خپله بېره خس نه ویني او واقعاً بې ګناه وي، نو د امریکایانو ضمانت یې دی کوي. والي وویل چې عبدالولي باید له امریکایانو سره وګوري او خبره ورسره سپینه کړي.

عبدالولي له امریکایانو ډارېده. ده والي ته وویل: «ما اورېدلي چې په پوځي مرکز کې امریکایان خلک شکنجه کوي، ډبوي یې، خوب ته یې نه پرېږدي او آن چې بې ستره کوي یې.»

والي ورته وویل: «دا ټول چټیات دي، زه خپله په امریکا کې اوسېدلی یم، امریکایان دا کارونه نه کوي.»

خو عبدالولي بیا هم ډارېده او پوځي مرکز ته نه ته. بالاخره والي ورته وویل: «زما زوی به درسره لاړ شي، ده په امریکا کې مکتب لوستی، په انګلیسي پوهېږي او ستا ترجماني به وکړي.»

له دې سره د عبدالولي زړه یو څه تکیه شو. په پیک اپ موټر کې دواړه د امریکایانو پوځي مرکز ته لاړل. په لار کې عبدالولي له ډاره رېږدېده، حیدر ډاډ ورکاوه.

د مرکز دروازې ته څېرمه کوټه کې امریکایانو له دوی سره وکتل. د پوځي مرکز د امنیت مسوول «برایان هالستېډ» پوښتنې په ارامو اعصابو پیل کړې، یادښتونه یې لیکل. ده عبدالولي وپوښت: له طالبانو سره پېژني؟ القاعده او حزب اسلامي څنګه؟ عبدالولي د نه ځواب ورکړ.

په دې پسې یې له عبدالولي بله پوښتنه وکړه چې په وروستیو کې پاکستان ته تللی او که نه؟ عبدالولي وویل چې پاکستان ته د پورونو د ورکولو لپاره تللی و. خو دا یې هېر وو چې څومره وخت هلته و او کله تللی و.

په کونړ کې چا جنتري نه ساتله آن چې اکثریت خلکو ته خپل عمرونه معلوم نه وو. آن حیدر لا په دې پوهېده. خو بیا هم

امریکایان له دې امله، چې عبدالولي ته پاکستان تـه د تـگ دقیـق وخت نه و معلوم، شکمن شول.

د سي آی اې کارکوونکی له غوسې تك شین واوښت. پـر عبـدالولي ور ټیـټ شـو، بـد بـد یـې ور وکتـل، غـږ یـې ډېر شـو. عبدالولي ته یې گواښ وکړ: «که ما ته دروغ ووایې، نـو تـه، ټوله کورنۍ او اولادونه به دې ژوندي پرې نه ږدم.»

حیدر اکـبر خوابـدی شـو، پـه خولـه گـونگی شـو، نـور یـې ترجماني نه شوای کولی. بل ترجمان را مخته شـو. د سي آی اې د کارکوونکي له غوسې سترگې سرې واوښتې. ده وویـل چې لـه عبدالولي به دلته څو ورځې تحقیقات کوي.

حیدر سرې تبې ونیو. دی نوی له مکتب څخـه فـارغ شـوی و، امریکایي تبعه و او د خپلـو نیکونـو جنـگ ځـپلي هېـواد تـه د مرستې لپاره راغلی و. اوس یې د سر په سترگو د خپلـو امریکـایي هېوادوالو هغه ظلمونه لیدل چې یـو وخـت شـورویانو لـه افغانـانو سره کړي وو.

حیدر په راوتو کې د عبدالولي پر اوږه لاس کېښود، ډاډ یـې ورکړ. عبدالولي ته یې وویل: «ریښتیا، ریښـتیا ورتـه ووایـه. گـوره، ریښتیا، ریښتیا ووایه.»

سرتېرو د بندي لاسـونه ولچـك کـړل، سر تـه یـې د سـیمنټو خالي بوجۍ ور واغوسته، توقیف خونې ته یې بوت او هلته یې په ځمکې پسې وتړه. یو سرتېري به څلـور ساعته پـر عبـدالولي پـیره کوله. په اوله شپه د «متیو جانسن» په نوم سرتېري د پیرې نوبـت و، د سي آی اې مـامور «ډېویـډ پـاسرو» را پیـدا شـو. ده سرتېـري تـه وویل چې عبـدالولي د سي آی اې زنـداني دی او دی بایـد اوس ترې تحقیقات وکړي. ده جانسن ته وویل، که په زړه نرۍ وي، نو له دې خایه دې لاړ شي، ځکه د سي آی اې تحقیقات د پـوځ لـه تحقیقاتو سره توپیر کوي.

له دې سره د څنگ کوټې ته ننوت. چوکۍ یـې مـاتې کـړې او څو سـوټي یـې تـرې جـوړ کـړل. د خـونې دروازه یـې پـه لغتـه خلاصه کړه. عبدالولي ته یې کوتکونه ونیـول. د بنـدي سر یـې لـه دېوال سره ووا‌هـه، بیـا بـه یـې پـر ځمکـه وویشـت، داسـې چـې د عبدالولي مخ به پر ځمکه لړېده. د عبدالولي لاسونه تړلي وو او لا یې سر ته د سیمنټو بوجۍ ور اغوستې وه.

ډېویډ پاسرو په عبدالولي لار ورکـه کـړې وه. د سي آی اې بندي پړمخې پروت و، لاسونه یې شا ته تـړل شـوي وو. د سي آی اې مامور یې پر ملا ور ناست و. له عبدالولي یې تحقیقات دغسې کول. له هرې پوښـتنې سره بـه یـې عبـدالولي تـه لغتـې ونیـولې، د سوټي گوزارونه به یې پرې وکړل او سر به یې له ځمکې، ځمکې وواهه.

د سي آی اې مامور ده ته وویـل: «زه چـې څـه غـواړم هغـه باید را ته ووایې، که نه نو حالت به دې له دې هم بدتر کړم.

پـه کـونړ کـې د سي آی اې د مـامور کړنـې د دې اداري د اخلاقـو پـه کـچ او مـېچ برابـرې وې. ده تـه خپـل کـړه وړه سـم ښکارېدل، ځکه په بگرام کې یې د بنـدیانو تحقیقـات هـم لیـدلي وو. په ۲۰۰۳کال کې په افغانستان کې له مجـازاتو معافیـت کلتـور حاکم و. د سي آی اې د کارکوونکو چې څه زړه غوښتل هغه یې کول، د قانون لاس د دوی گرېوان ته نه رسېده. په همدې کال کې د سي آی اې د کابل دفتر خپل مرکزي دفتر تـه لـیکلي وو: «موږ دې پـایلې تـه رسـېدلي یـو چـې د ځینـو بنـدیانو پـه اړه ډېـر کـم معلومات لرو. له ځینو بندیانو په میاشتو میاشـتو تحقیقـات نـه دي شوي آن چې د ځینو بندیانو دوسیو ته په یو کال کې لاس نـه دی ور وړل شوی.»

د تحقیقاتو په سبا ماښام د سي آی اې مامور «ستیفن جونز» خپلې مېرمنـې تـه ولیکـل: «بنـدي لـه مـوږ سره پـه تحقیقـاتو کـې همکاري نه کوي، خو ده له موږ نـه کـرۍ شـپه سـترگه نـه ده پټـه کړې، خوب ته مو نه دی پرېښی. ښه مو سابه ور پـه مالگـه کـړي، گومان نه کوم چې تر څلور ورځو دې په پښو ودرېدلای شي.»

عبدالولي چې په اوله شپه شکنجې ولېدې، پوځـي سـاتونکو ته یې په اشاره وویـل چـې د تومـانچې پـه ډزو یـې ووژني، خـو ساتونکو د ده په خبره غوږ و نه گـراوه. د سي آی اې د مـامور پـه امر یې عبدالولي تر شکنجې لاندې ونیوه.

د تـرجمان پـه خولـه یـې عبـدالولي تـه وویـل، کـه زړه یـې وغوښتل چې پـر پـوځـي مرکـز د راکټونـو د راتوغولـو پـه اړه څـه

ووایي، نو باید «ډېف، ډېف، ډېف» نارې وکړي، ترڅو د سي آی اې مامور يې خوا ته راشي.

د جون په ۲۰مه شپه د «کېوین گېټین» په نوم سرتېری نوکریوال و. دی وروسته کیسه کوي: «عبدالولي یو شواروز (۲۴ ساعته) خوب نه و کړی، ډوډۍ او اوبه یې پر خوله نه وو اېښې، پرلپسې شکنجه شوی او چا دمې ته پرېښودی نه و.»

دا سرتېری وایي: «بندي د لېونیانو چمونه کول، سر به یې له دېوال سره وواهه، له ځان سره بونگېده، لاسونه به یې پر زړه کېښودل، له درده به لکه د مار تاو را تاو شو.» گېټین لا په پیره ولاړ و چې عبدالولي د ترجمان په خوله غږ کړ: «ډېف، ډېف، ډېف.»

سرتېرو وپوښت: «ډاډه یې چې د سي آی اې مامور را غواړې.» شېبه وروسته ډېوېډ پاسرو په موټر کې را ورسېد. د موټر څراغونه لگېدلي وو. پروتوکول دا و چې د شپې له مخې به په پوځي مرکز کې موټرونه په مړو څراغونو گرځي. پر سرتېرو دا ښه و نه لگېده چې د سي آی اې مامور د پوځي مرکز امنیتي اصول تر پښو لاندې کوي. ډېوېډ پاسرو له موټره را کوز شو، په لاس کې یې پلاستیکي پیاله نیولې وه. د ده له خولې او پیالې څخه د شرابو بوی لتېده. د سي آی اې مامور پیاله یو سرتېري ته ورکړه. ساتونکي ته یې وویل: «دا درسره وساته.» گېټین ته یې په اشاره وویل چې د عبدالولي خونې ته پسې ورشي.

ډېوېډ پاسرو بیا له بندي پوښتنې پیل کړې: «بریدونه د چا په امر کوې؟ سلاکوټونه مو چېرته دي؟» عبدالولیورته بیا، بیا وویل: «نه پوهېږم.»

د بندي د «نه» ځواب له اورېدو سره به ډېوېډ پاسرو لاسي څراغ مړ کړ، په کوټه کې به تیاره خپره شوه. گېټین ته به څه نه ښکارېدل، خو دڅپېړو او سوکانو غږونه یې اورېدل. د عبدالولي غږ یې اورېده چې ژړل یې او زگېروي یې کول.

بندي د سي آی اې له مامور څخه وپوښتل چې ولې ډبول کېږي. د عبدالولي له سره یې کځوړه لا تراوسه لرې کړې نه وه. «خبرېمه کوه، ته اصلاً د وجود په خوړېدو خبرېږې نه. تا ته څه پته ده چې زه دې وهم، کېدای شي چې ساتونکي به دې وهي یا هم بل څوک.» گېټین دې خبرې خوابدی کړ، دی وایي هغه ما نه وهه.

نږدې یو نیم ساعت یې بندي ډباوه او پوښتنې یې ترې کولې. پاسرو له خونې ووت او ساتونکو ته یې امر وکړ: «فشار پرې نور هم زیات کړئ، گورئ چې خوب ته یې پرېنږدئ.»

گېټین د جون په ۲۱مه بیا وظیفې ته راغی. دی وایي: «عبدالولي داسې ښکارېده تا به ویل چې تازه یې له چا سره جنگ کړی دی، مخ او لاسونه یې گرېدلي وو، له حرکته لوېدلی و، مازې زنگېده، له ځان سره بنگېده، ته وا دېوال ته یې خبرې کولې، له خپلو بوټانو سره غږېده.»

سټیفن جونز، په مرکز کې د سي آی اې مشر، په خپل دفتر کې و چې یو ساتونکی راغی، ده ته یې وویل چې یو ځل دې بندي وگوري. جونز چې راغی، عبدالولي په یو اړخ پروت و، زگېروي یې کول. دی وایي: «رنگ یې سپین اوښتی و، له اخ او ټوخه لوېدلی و.» د پوځي مرکز ډاکټرانو ورته اکسیجن ولگاوه او سیروم یې ورته چالان کړ، خو ساعت وروسته په عبدالولي کې ساه نه چلېده.

ماسپښین مهال یې والي «فضل اکبر» پوځي مرکز ته را وغوښت. د پوځي مرکز قوماندان «مارک مېلر» ورته وویل: «متأسفانه یو بد خبر درته لرم. عبدالولي مړ شوی دی.» والي سر وښوروراه، په انگرېزي یې وویل: «دا خو ډېر بد شوي.» ډېوېډ پاسرو ورته وویل: «بندي کوښښ کاوه چې زولنې خلاصې کړي او خپل سر به یې له دېواله سره واهه.»

والي او زوی یې مړی ولید. «مارک مېلر» ویل لوړ پوړي چارواکي غواړي چې مړی عدلي طب ته ولېږل شي، خو والي ورته وویل، طبي څېړنې به د کونړ خلکو ته ثابته کړي چې امریکایان وحشي شکنجه کوونکي دي.

والي په ډېر ټینگار په امریکایانو دا ومنله چې د عبدالولي له مړ جسد سره غرض و نه کړي. د قرباني کورنۍ د خپل عزیز په مړي پسې راغله. امریکایانو دوی ته دوه زره ډالر ورکړل.

# عجیبه کیسه

## (من کان لله کان الله له)

مفتی محمدگل سعید

دحلب نامتوعالم شیخ عبدالفتاح ابوغدة متوفی سنة (۱۴۱۷هـ) په خپل تالیف (صفحات من صبرالعلماء علی شدائدالعلم والتحصیل ص ۲۲۲) کې دحافظ ابن رجب حنبلي دذیل طبقات الحنابلة په حواله دحدیثو د نامتو عالم قاضی ابوبکرمحمد بن عبد الباقی الأنصاری البغدادي البزاز دمارستان په قاضي مشهور چې په ۴۴۲هـ کال زیږیدلی اوپه ۵۳۵ هـ کال کې وفات شوی، یوه عجیبه له پنداونصیحت نه ډکه قیصه ذکرکړې ده.

شیخ ابوالقاسم الخزازالصوفی البغدادي ویلي دي چې ماله قاضی ابوبکرمحمدالبغدادي څخه اوریدلي دي چې هغه فرمایلي دي: یووخت څه موده په مکه مکرمه کې اوسیدم، او ډیر مفلس شوی ووم، یوه ورځ رابانده لوږه ډیره زیاته شوه، نوله کور نه بهرلاړ م ترڅو یوه ټوټه ډوډۍ راپیداکړم اووې خورم، نو په همدې کوښښ کې اخته ووم، چې ناڅاپه مې د ورېښمو څخه په جوړه شوې کڅوړه سترګې ولګیدلې، چې مې وکتله نو ګورم چې دملغلرو یو قیمتي هار (غاړکی) په کې پرته ده چې په ټول ژوندکې مې داسې ښایسته او ارزښتناکه هارچیرته نه ؤترسترګوشوی. کڅوړه مې راواخیستله او بیرته راروان شوم، زه لا په لاره روان ووم چې دیوسړي غږ مې واورید چې په لوړآواز سره وایي: له ما څخه دورېښمو یوه کڅوړه ورکه شوې که چاموندلې وي نو پنځه سوه دیناره انعام ورکوم. زه نږدې ورغلم اوپوښتنه مې ترینه وکړه چې په کڅوړه کې دننه څه شی دي؟ هغه شخص وویل: دملغلرو یوګران بیه غاړه کی ده، بیا مې ترینه دغاړه کی نښه وپوښتله، کله ئې چې ټولې نښانې صحیح وښودلې نو کڅوړه مې پرته له کوم ځنډه ورکړه. دکڅوړې خاوند پنځه سوه دیناره راوویستل او ماته یې دانعام په توګه ونیول. نوموړي دروپیوله اخیستلو څخه ډډه وکړه او ویې ویل: ماته نه ښایي چې دیوموندل شوي شي په بدله کې روپۍ واخلم، مادکڅوړه په دې تمه ساتلې وه چې خپل څښتن ته ئې وسپارم او دخپل رب رضاپرې ځانته حاصله کړم، نه ددې لپاره چې کومه جایزه پرې ترلاسه کړم، نو دپیسو اخیستلو نه مې انکار وکړ، په داسې حال کې چې دلوږې دختمولو لپاره مې دوچې ډوډۍ یوه ټکره هم له ځان سره نه لرله. دکڅوړې خاوند راڅخه ولاړ او ما ته یې دخیر دعا وکړه. قاضی محمد بن عبد الباقی الأنصاری البزار مکه مکرمه کې بیا دیوڅو ورځو لپاره پاتې شو، او په پای کې یې پرېکړه وکړه چې بایدبیړۍ کې سپور شم او یوې خواته لاړ شم کیدای شي یو څه مال ترلاسه کړم او خپلې اړتیاوې به پرې پوره کړم. دی په کشتۍ کې ناست ؤ، چې یوتیز توپان راوالوت او ددوی بیړۍ ئې یو اړخ او بل اړخ ته

پورې وهله تردې چې بیرې ئې ټوټې ټوټې کړه او ډوبه شوه. نومورې دبیرې دیوې ماتې تختې پورې ونیښت او څو ورځو پورې دسمندر څپو یو طرف او بل طرف ته پورې واهه تردې چې یوه ورځ ئې دسمندر غاړې ته راوویست، په داسې حال کې چې ډیر زیات ستړی شوی او تکلیف شوی ؤ. په ډیر تکلیف سره ئې ځان یو نژدې جومات ته راورساوه او هلته جومات کې پریوت. څه موده وروسته جومات ته یو سړی راننوت اودده نه ئې دحال پوښتنه وکړه، ده ورته ټوله کیسه وکړه، بیاهغه سړي ورته خوراک څښاک راوړ، او جامې یې ورته راوړې چې ځان پرې وساتي. سړي ورته زیاته کړه چې ددې کلي خلک دې جومات ته دیوامام په تالاش کې دي ترڅو دوی ته لمونځ ورکړي اوځوانانواوماشومانوته درسونه ورزده کړي. ده ورته وویل: چې زه دالله تعالی دکتاب قران عظیم الشان عالم اودنبوي احادیثومدرس یم. دکلي خلکوورسره په دې خبره اتفاق وکړچې ته به زموږ دجومات امام شې، نوفورا ئې دجومات امام وټاکه. قاضي صاحب وایي چې دسیمې خلکوته به مې لیک اولوست ورښوده اوهرچابه راڅخه استفاده کوله تردې پورې چې څه موده وروسته مې اقتصادي حالت ښه شو، نویوه ورځ راته کلیوالو وویل: چې زموږ کلي کې یوه یتیمه انجلۍ ده غواړوچې درته په نکاح ئې کړو، دوی پر ما ډیر زور راووست بیا مې ددوی دغه وړاندیز ومانه اوبالاخره مې نکاح ورسره وکړه. کله مې چې له دې انجلۍ سره نکاح وتړله اوزه یې کوټې ته ورغلم نوما دناوې په سینه دملغلرو ښکلې غاړه کۍ ولیده، بې اختیاره مي دغاړه کۍ په کتو کې سترګې ښخې کړې او په حیرانتیا کې شوم چې دا خو هماغه غاړه کۍ ده چې ما مکه مکرمه کې موندلې وه. زه لا په دې غور او فکر کې وم چې انجلۍ له کوټې بهرته لاړه، اوهلته یې خلکوته ویلي ؤچې نومورې زما مخ ته نه وګوري، اونه راسره مجلس کوي بلکه هغه خپلې سترګې یوازې زما په هار باندې ښخې کړي دي.

کله چې ما کلیوالو ته د سهار لمونځ ورکړ نوخلکو دانجلۍ شکایت رایاد کړ، (فقالوایاشیخ! کسرت قلب هذه الیتیمة من نظرک الی هذاالعقدولم تنظرالیها، فقصصت علیهم قصة العقد،) ما دوی ته وویل: چې دغه غاړه کۍ ماڅه موده مخکې د وریښمو په یوه کڅوړه کې دالله په کور (مکه مکرمه) کې پر ځمکه پرته موندله، بیا مې ځان سره وساتله چې خاوند ته ئې وسپارم او بیا مې خاوند ته وسپارله، کله چې ده دغه قیصه خلکوته وکړه نوخلکو په جومات کې په یوه خوله تکبیراوتهلیل اوازونه په دومره لوړغږ پورته کړل چې جومات ئې ولړزاوه، تردې پورې چې داقیصه دټولې جزیرې په خلکوکې مشهوره شوه. قاضي صاحب وایي: چې دکلي خلکو ماته وویل چې دغاړه کۍ خاوند ددغې یتیمې انجلۍ پلار ؤ، او همدغه یوه لور ئې درلودله او دغه جومات کې به ئې خلکو ته لمونځ ورکاوه، څه موده مخکې وفات شو، مګر دهغې ورځې نه چې دی دحج څخه راستون شوی اوبیا تر مرګه پورې به ده دا دعا کوله: چې ای الله! زه به هیڅکله دهغه غاړه کۍ موندونکي شخص په خیر څوک پیدا نه کړم، ای الله! ته ئې راته لیدل اسانه کړې ترڅو خپله یوازینۍ لور ورته په نکاح ورکړم.

اوس الله پاک دهغه دعا دمرګ نه وروسته قبوله کړه او تاسو ئې دلته راوستلی او دهغه لور مو تاته په نکاح کړه. قاضي صاحب وایي چې له دې ښځې څخه مې دوه زامن پیداشول اوډیروخت یې راسره تېرکړ، بیاداوفات شوه اوهغه هارېې ماته په میراث کې پاتې شواوماپه یولاکه دیناره خرڅ کړ. من کان لله کان الله له

# د بشار الاسد رژیم

## د پرزیدو څخه څوک ژغوري؟

**بشير**

دتيرو څواوونيو راهيسې مسلسل په خواله رسنيو کې دسوريې [غوطه] ښار دمظلومو سني مسلمانانو کوم زړه بوږنوونکي انځورونه او دردوونکې ويډياګانې نشرشوي، باور وکړئ زما په څېر ډېرخلک يې دليدو تاب نلري !! په خاصه توګه هغه ويډيو ګانې چې خلک لګيادي دنازولېو، تنکيو او ګلانو پشان ښايسته ماشومانو مړي د نسکورو شويو کانکريټي کورونو دېريوتو ملبو څخه راباسي او دراويستونکو د سترګو نه داوښکو په ځای وينې څاڅي... اخر ولې ...؟ او په کوم جرم دا ښايسته ماشومان او ښکلي ځوانان دروسيې ، ايران او بشار الاسد د ګډو وحشي پوځيانو لخوا په دومره بې رحمۍ ا و بيدردۍ وژل کېږي ؟ يقين وکړئ کله نه کله ځان سره ووايم چې د چنګيزخان او هلاکوخان دور خو به بيا راګرځيدلی نه وي؟ هو! نني متمدن وحشيان او ظالمان د هغو سحرايې وحشيانوڅخه په څو واره ډېر وحشيان او ظالمان دي ...

دسوريې ختيځ ښار ( غوطه) دبشار الاسد ځواکونو سربيره دايراني او روسيې پوځيانو له لوري کلابند دی، دزمکې او هوا دواړو نه پر مظلومو خلکو بريدونه کوي او هغه هم داسې وحشيانه بريدونه چې دجنګونو په ټول تاريخ کې ساری نلري، ددينه وړاندي په ودانيو او دخلکو نه په ډکو کورونو داسې ړنداه بمباردونه هيڅ ظالم نه ظالم رژيم هم ندی کړي

انځورونه ښيي بسته ښار نړيدلی او ودانۍ يې ړنګ بنګ پريوتې، دتنکيو ماشومانو جسدونه د ديوالونو او بامونو لاندې سوزيدلي پراته دي، دخبري سرچينو له قوله: تردا مهاله د۷-۸ سوه زيات خلک په غوطه کې شهيدان شوي اوهم دومره شمير نور ټپيان شوي ايراني ، روسي او اسدي ځوکونه غوطې ته هيڅ قسم بشري مرستې وړل نه پريکدي اونه دټپيانو د درملنې لپاره درملو وړو ته اجازت ورکوي او هم يې دخوراکي توکيو په ليږد هم بومخ بنديز لګولی

په خواله رسنيو کې کوم زړه بوږ نوونکي انځورونه او دردونکې ويډګانې خپريږي ،بيا هم نړيواله ټولنه او خلک چوپه خوله دي ، دملګرو ملتونو سازمان چيرته په کوم غارکې ننوتی او ورته دغوطې دمظلومانو فريادو نه، نه رسي، اسلامي کانفرانس ، اسلامي هېوادونه او دحقوق بشر درواغجن ډنډورچيان يوآځې دغوطې ټولوژنې په نندارهبوخت دي

ځينې يواځې تش په غندلو ځانونه دمسؤليت نه خلاص بولي خو د ظلمونو دمخنيوي لپاره هيڅوک هم عملي ګام نه پورته کوي دملګرومتونو نړيواله اداره اخر دکومې ناروغۍ دوا ده؟ هم داشان اسلامي هېوادونه دمسلمانانو دخونديتابه په اړه هيڅ قسم مسؤليت نه احساسوي

شام ته په عربي [ سوريا] او په انګريزي کې [ SYRIA]وايي، دمنځني ختيځ يوپخوانی هېوا د دی چې داسيايې لويې وچې په ورروستيو حدودو کې پروت دی اوسنی نوم يې ( عرب جمهوريه شام ) دی چې غرب ته يې لبنان، جنوب غرب ته يې فلسطين او اسرايل، جنوب ته يې اردن مشرق ته يې عراق او شمال ته يې ترکيه پرته ده

پخوا زمانه شام هغې ټولې سيمې ته ويل کيد په کومه کې چې اوس دلبنان، سوريه، اردن فلسطين او اسرايل په نومو٦ جلا هېوادونه جوړ دي

داسلام لومړي راشد خليفه حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دهجرت په ۱۳ کال خالدبن وليد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته حکم وکړ چې دعراق فتح څخه له وزګاريدو وروسته دشام په لورحرکت وکړه ،هغه هم داسې وکړل ، دعراق وروسته يې دشام په لورحرکت پيل کړ او په دې توګه شام کې دفتوحاتو لړۍ پيل شوه

کومه چې دهجرت په ۱۴ م کال بشپړه شوه دغه مهال حضــرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دمسـلمانانو خلیفه شوی و.

دمسلمانانوځخه دمخه شام د[ بازنطيني) واکمنۍ تـرواک لانـدي و، دشـام اوسـنۍ پلازمینه (دمشق) نیږدي اتیا کاله دبنو امیـه خلفـاوو دارالخلافـه پـاتې شـوی او پـه دې علاوه شام ته د پیغمبرانو وطن هم ویل کېږي چې لویشت لویشت خاوره یې دانبیـا علـیهم السلام په مبارکو قدمونو ښایسته او دهغوی په منورو قبرونوبختوره ده

په ۱۹۴۶ زکې په سوریا کې حا فظ امین واکمن شو دهغه په حکومـت کـې دټولـو فرقو او قومونو استازو ګډون لاره ، خو اصل واک دپـوځ پـه لاس کـې و داوسـني ظـالم پاچا بشار الاسد پلار حافظ الاسد ددفاع وزیر و په ۱۹۷۰ زکال کـې هغـه پـوځي بغـاوت وکړ او په واک یې قبضه وکړه هغه پوره دیرش کاله دشام ولسمشر یـا پاچـاو ځـوک چـې سرسـخته شـیعه و او پـه شـیعه ګـانو کـې دعلـوي نصـیري فرقـې ځخه و، کومـه چـې دمسلمانانو او اسلام په دښمنۍ کې ډیر بـد تـاریخ لـري او همـیش یـې داسـلام او سـني مسلمانانو په خلاف داغیارو په ملګرتیا کې مسلمانانو ته نه جبرانیدونکې زیانونه رسولي

حافظ الاسد واک ته درسیدو سره سم په شام کې سنیان ځنډې تـه کـړل دپـوځ دننـه یې په لویو کلیدي پوستونو نصیري شیعه ګان او ګومـارل اوپـه دې سره سـوریا دحـافظ الاسد شخصي ملکیت اوګرځیده که هرڅا به دهغه دظلمونو په ضد غږ پورته کړ، هغه یـې دځنډ پرته له مخې لرې کاوه په دې توګه یې دشل زره نـه زیـات سـني عالمـان شـهیدان او بندیان کړل په ۱۹۸۲ز کال کې خلک چې د هغه دظلمونو ځخه زیات په تنـګ شـول پـه (حماه) ښار کې پاځون وشو هغـوی دظلمونـو دپـای غوښـتنه کولـه لـیکن دحـافظ الاسـد پوځیانو دهغوی په لور دځپلو توپونو خولې تاو کړې او له لس زره ځخه زیات سنیان یـې په شهادت اورسول اوټول ښار یې په کنډواله بدل کړ په ۲ زره م کال حـافظ الاسـد ومـړ په ځای یې ځوی بشار الاسد واکمن شو هغه دځپل ظالم پلار په قدم ، قدم ایښودو سره پـه ظالم او جبرکې دځپل پلار ځخه سبقت وکړ.

پنځه کاله وړاندې چې په عربي نړۍ کې دعربي بهـار پـه نـوم دبـدلون کومـه څپـه پورته شوه په ترڅ کې یې سوریا کې هم دبشار الاسد په ضد پـاځون پیـل شـو پـه ۲۰۱۱ز کال کې خلک د ښارونو واټونو تـه ووتـل او پـه سـوریا کـې د تیـرو ځلوېښـت کلـو نـه دمسلط بیرنۍ حالت دپای غوښـتنه کولـه خـو دبشارالاسـد پوځیـانو پـه هغـو دوسـلو او توپونو خولې ور تاوکړې چې په سبب یې حالت بیخي ترینګلی شـو ، کـورنی جنـګ پیـل شو ، نوې جنګې ډلې جوړې شوې هغوی ټولو پریکړه وکړه چـې څـو بشارالاسـد لـه واکـه لاس په سرنشي ترهغه موږ دځپلې مبارزې لاس نه اخلو ، دبشار الاسد پوځ هم تقسیم شو

له یونیم لک نه ډیر خلک اووژل شول اونـور په لکونو ګاونډیو هېوادو ( ترکیـې، لبنـان او اردن ) ته مهاجر شول اوس هم په سوریا کـې نیږدي اتلس ملیونه خلک پـاتې دي چـې پـه هغوی کې لوی شمیر دنصیري علـوي شـیعه ګانو دی ، نیږدي وه چې بشار الاسد لـه واک را او پرځوي خو په ۲۰۱۲ز کـال کـې دایـران په مرسته حزب الله دلبنـان ځخـه سـوریې تـه جنګیالي ولیږل هغوی هلتـه دشـام خلـک پـه ډیـره بـې دردۍ سره پـه ښښـه کـړل پـه ۲۰۱۳ زکال کې روسیې دبشارالاسد رژیم په ملاتـړ سوریه کې عملیات پیـل کـړل اوسـنی حالـت دادی چې روسیه او ایران په ګډه سوریه کـې دبشار الاسد رژیم پـه ملاتـړ عملیـات کـوي موږ نې وسلې کـاروي او لګیـادي شـام کـې دمسلمانانو نسل نیست ونابودګرځول غواړي

اوس پوښتنه داده : چې روسیه او ایران به ترڅو دبشار رژیم ژغوري؟ ایـا روسـیه بـه ترهغه عملیات کـوي چـې څـو دبشـار الاسـد یوتن مخالف هم پاتې نشي؟ بلـه پوښـتنه داده چـې : امریکـا ولـې دروسـیې دبریـدونو پـه مخنیوي کې ځان پاتې بولي؟ ایا ددې ناکامۍ نه بریښـي چـې دبشـار الاسـد واک داسرایـل دبقا لپـاره اهمیـت لـري پـه دې وجـه امریکـا غـواړي دبشـار حکومـت ژر او نـه پرځـوي دکتونکـو پـه نظـر: دسـوریې اوسـنۍ حالـت دسیمې دهغو هیوادو لپـاره هـم دخطـر زنـګ دی لـه کومـو ځخـه چـې اسرایيـل خطـر محسوسوي ... پای



# د طالبانو ۲۳ کلن غورځنګ، ملت او ملي کتې

که طالبان، او د هغو د درويشت کلن خونړي غور ځنګ پيښې او لاسته راوړنې په نورو امتونو يا د اسلام په پيل کې رامنځته شوې واى نو قران کريم به د کهف اصحابانو (أَمْ حَسِبْتَ أَنَّ أَصْحابَ الْكَهْفِ وَالرَّقِيمِ كانُوا مِنْ آياتِنا عَجَباً/او-۱۰م-۱۳م-۱۴م اياتونه)، د بدر، احزاب او نورو پېښو ترڅنګ به يې د دوى او د دوى د غورځنګ د پېښو يادونه هم هرو مرو کړې وه.

د طالبانو راښکاره کيدل له لومړي سره په روانه يوېشتمه پيړۍ کې يوه لويه پيښه وه، د دې پيښې حجم يوازې د اسلام دښمنانو ته له هغې څخه د ورپيښو ژورو انديښنو په اثر مالوميدو چې پروړاندې لويديځ يو والي رامنځته کړ، فکر کوم مسلمانانو او بيا زموږ مظلوم ولس ته له دوو وجو دغه پيښه په خپل اصلي جسامت کې نه بلکې له هغه وړه مالومه شوې وي:

يو داچې زياتر يو چاته خپلې ښکلاوې په خپله نه مالوميږي، اوبيا د دوى ښکلا (طالبان او د هغو لاسته راوړنې) خو د اسلام د دښمنانو له لوري له پيله بيا تراوسه کمرنګه بلکې لا بدرنګه او پيکه کيږي.

بل داچې هغوى د طالبانو په راتللو له نامطلوب لوري مطلوب ته په راستنېدنه باورې و، نور يې د هغوى د ظهور زمانې او مکاني ارزښت ته هيڅ پام نه و چې په مټ به يې دوى ته دغه هرڅه مالوم شوي واى.

د طالبانو د راپورته کيدو دغه پېښه په واقع کې که د لومړي جهاد د ريښتونو مجاهدېنو دوينو رنګ، ريښتونولي او سرښيندنو برکت، د هغو د سپيڅلتيا کرامت و، همداسي د ډيرو لپاره يو ازميښت هم و چې د طالبانو د ځينې لاسته راوړنو په استناد يوازې هغوى پکې بريالي بريښې اوبس.

خپل غورځنګ ته ملي بڼه ورکول ، د هيواد پينځه اتياسلنه واک ته يې پر بريالیتوب سره رسول، دريو هيوادو له لورې يې په رسميت پيژندنه، د ديپلوماتيکو اړيکو د پراختياپه لته کې يې په ملګرو ملتونو کې د استازولې هڅه او... له هغو لاسته راوړنو څخه وې چې بې پنا اوږده څيړنه غواړي.

طالبانو له خپل بروز سره سم په لږ وخت کې ترواک لاندې سيمو کې خپل غورزنګ ته د يو مجسم اسلامي خلافت بڼه ورکړه، چاروا کې يې ديني عالمان و، دين او سياست يې بيا رايوځاى کړل، د ښې حکومتولۍ او د امنيت د تأمين ترڅنګ د ځينې هيوادنيو اوملي پروژو په رغونه يې هم لاس پوري کړ چې په نږدې کې به يې پکې ګڼ پرمختګونه رامنځته کړې واى.

دا هريو په خپل ځاى لويه لاسته راوړنه وه، خو غربي نړۍ ونشو زغملاى او ويره يې څرګنده کړه چې داسي نه په نورو اسلامي هيوادونو کې هم د دوى په تعقيب غورځنګونه او اسلامي حکومتونه رامنځته شي او د غرب موخې وګواښي.

د يېر غلګرو دعوې د بلها پوچو تبليغاتو په سيوري کې وې چې له دې اړخه يې د طالبانو د لاسته راوړنو د روڼو

حقائقو پله هم سپکوله، خو په وړاندې يې د طالبانو چوپتيا شايد له دې وجې وه چې واقعيتونه هرچا پـه سـترګوليدل لـه هغـو سره سم بـه پريکـړه هـم دوی کولـه، تبليغاتو ته نه طالبانو خپله پوره پاملرنه درلوده او نه يې هم د نورو په تبليغـاتو ډيـر سر خوږاوه، خو دا يو داسې وخت و لکه چې وليدل شول تشې اوازې او ګنګوسې لـه نقدو لاسته راوړنو درنې ختلې.

څرنګـه چـې دا اوس هرچاتـه مالومـه ده چـې د يرغلـګر دښـمن او د هغـه د ګوډاګيانو خوږې او غولونکې دعوې او وعدې د طالبانو له برحقې داعيـې او لاسـته راوړنو څخه په مفلوج او ګونګ تقليد ولاړې دي، موږ يې د هغو دريو اساسـې بهـانو څخه لنډ اوپر يوه يوه بيلګه غږيږو چې د طالبانو دلاسته راوړنـو پـه توګـه ځمکنـې حقائق و.

۱):- د تروريزم له منځه وړل: په دې برخه کې طالبان دومره مخکې لاړل چې (له تروريستې عبارت) د روسانو او شوروي وروسته يې د هغوی لاسپوڅې او حتې د هغو په وړانـدې د جنګيـدلو جهـادي قومانـدانانو هغـه تروريسـتي دلـه مـاری اوټوپـک سالارۍ هم له منځه يو وړې چې پيپلې يا خپل سرې را منځته شـوې وې او۸۵سـلنه هيواد يې ترې تصفيه کړ، خو له يرغل سره سم تروريستې بيرته د هيواد په کچه نه بلکې د نړۍ په کچه پراختيا وموندله.

۲):- د نشيې تو کو په وړاندې مبارزه: طالبان په داسې وخت کې راپورته شـول چې سيمه ايزو ملايانو د تارياکو کرکيلـه روا بللـه، ځينـې لـه طالبـانو سره اړيکـې لرونکې هم د تارياکو د کښت، پيير اوپلـور کاروباريـان و، او بـل خـوا پـه بدخشـان، هلمند، ننګرهار او...کې د اپيمو د توليد هتۍ جوړې شوې وې، د قاچاق له لارې يې په پاکستان او تاجکستان کې بازار هم موندلی و او د کروندګرو يـوه مـالي سرچينـه ګرځيدلې وه.

نو په داسې وخت کې يو ناڅاپي بنديز کروندګر له ناڅاپي ستونزو او طالبـان هم د هغو له ناڅاپي خوابدۍ سره مخ کول چې لـه املـه يـې ځينـې چـارواکو مشرـ ملاصاحب (رح) ته د کرار کرار بنديز قناعت ور کړ چـې لـه مخـې بـه يـې لـوميړی درېيمه، بيا نيمه او وروسته به ټوله له منځه وړله کيږي.

خو وروسته بيا د دې پروسې ځنډ مشر ملاصاحب د هغې په پرمختګ بې باوره کړ، له عالمانو سره د هغې له ښې ارزونې وروسته ملاصاحب دا وار وچ بنـديز و لګـاو او ويې ويل (( د کوکنارو کرکيله، بيير او پلور د يو شرعي منکر په توګه له هرراز قيد او شرط پرته د خپل مسئوليت له مخې بندوم، په تير له خـدای (ج) څخـه د عفـوې تمه لرم)).

له دې وروسته د څو مياشتو په دننه کـې لـه هـر ډول سر غړونـې پرتـه د غـه بنديز له پوره برياليتوب سره پلی او تارياک بند شول، هغه سيمې چې طالبـانو پـه

واک کې نه درلودې د تارياکو کرهنې ورکې دوام درلود چې له امله يې د هيـواد ځينـې مافيايي خلک او قاچاقيان هم هلتـه تلـل، ير غلګرو له راتلو سره سم بيرتـه را غبرګـه او۸۰سلنې ته يې لوړه کړه.

۳):- پـه هيـواد کـې د يـو ښـه او پـر اسوده حکومت رامنځته کول: د طالبانو لـه لوري په هيواد کې د شريعـت د نفـاذ پـه مټ پورته دوه لاسته راوړنې تـرسره شـوې، له هغه وروسته ورته په هيواد کې د يو ښه او پر اسوده حکومت رامنځتـه کولـو لپـاره ډيرڅه نه و پاتې.

د طالبانو له لوري د کابل له نيولو څو مياشتې وروسته، له ترکمنستانه د ګـازو د نـل ليکـې راواردولـو پـه اړه د دې هيـواد، پاکسـتان، او د طالبـانو پـه نمائنـدګې د افغانستان ترمنځ پـه پلازمينـه کابـل کـې درې اړخيزه ناسته وشوه او له طالبـانو سره پرې مخامخ خبرې وشوې.

افغانسـتان يـواځې د يـو ترانزيـت هيواد په توګه د خپلو پام وړ ملې ګټو پـه نظر کې نيولـو سره هغـو ټولـو کړيـو تـه د همکاري ډاډ ورکـړ چـې ترکمنسـتان او لـه هغــه څخــه راواردونکــې شرکتونــه ورسره همغږې ولري، هغه و چې د۱۹۹۷ز د مئ پـه مياشـت کـې د ارجنتـاين هيـواد بـرډاس شرکـت مشرـ کـارلوس بلغـيروني( carlos bulgheroni) له طالبانو سره د دې نل ليکې په اړه قرار داد ته ورسيد چې لـه مخـې بـه يې له ترکمنستانه د دوه نيم مليـارد ډالـرو په لګښت د طبيعي ګاز دولـس سـوه مـتره اوږده نل ليکه غځوي.

له دې کابو لس ورځې وروسته د ترکمنستان په پلازمینه عشق اباد کې د افغانستان په ګډون د لسو هیوادونو په ګړیتوب د ایکو غونډه رامنځته شوه، د هغې له پریکړه لیک سره سم د دې هیوادونو ترمنځ به پاخه سړکونه، د اورګاډو پټلۍ، له عشق اباده ایران او پاکستان ته د تیلو او غازو نل لیکې غځول کیدې، بریښنا به را واردیدله، او د غونډې غړو هیوادونو ترمنځ به د خپلمنځي صادراتو وارداتو ترانسپورتونه ترسره کیدل.

په دې ارتباط د هیوادونو او کمپنیو سیالۍ ښه په زور کې وه، هغه و چې په سبا امریکایې سرچینو د امریکا له یونیکا او د سعودي له دلتا شرکتونو سره د پاکستان او ترکمنستان لخوا د یادې نل لیکې تړون اعلان کړل.

له هغه وروسته چې د یونیکال شرکت له عربستاني دلتا، جاپاني هوندا او کوریایي هونډایي شرکتونو سره په یو کیدو له نوښت سره را وړاندې شو د۱۹۹۷ز داکتوبر په وروستۍ لسیزه کې د طالبانو د معادن او صنائع وزیر مولوي احمد جان ترکمنستان ته د هغه له خارجه وزیر شیخ مرادوف سره لیدنې ته لاړ، هغه طالبان د شرکتونو له دغې اتحادیې سره ګډ کار ته را وبلل، طالبانو هم د بدیلې لارې د نه لرلو له امله ورسره هوکړه وکړه، او بیا د اکتوبر په۲۵مه د ترکمنستان لخوا له یادې اتحادیې سره د تړون لاسلیک اعلان شول، د هغه څینې لاندې بندونو ته په کتو د افغانستان لپاره بیخي ګټور و.

۱:- په دې پروژه کې به له مسلکي کسانو پرته نور ټول زموږ هیواد وال وي چې له برکته به یې شپیته زرو وګړوته کاروبار ومونډل شي، خو له بده مرغه د غه هیواد وال څینې (حامد کرزی، خلیل زاد، عبدالسلام عظیمي او...) غونډې د سي اَیْ اِیْ کسان و چې دې پروژې ته یې هم د سي اَیْ اِیْ رنګ ور کړ.

۲:- نل لیکه به تر دیرشو کالو د پروژې د تطبیقونکې شرکت او له هغه وروسته به د افغانستان ملکیت وي، په دې دیرشو کالو کې به یاد شرکت افغانستان ته د هرمتر مکعب پر سر ترانزیت فیس ورکوي چې کلنې عوائد به یې۳۵۰ملیون ډالروي.

۳:- له نل لیکې سره په دیرش کیلومترۍ کې پرتو سیمو ته به ګاز ورکوي، داړتیا وړ څایونو کې به د انرژي د پیداکولو لپاره توربینونه فعال او په مرسته به یې نږدې سیمو ته انرژي و ویشله شي، او کولای شو له هیواده د دې نل لیکې له لارې ګاز د باندې صادرکړو.

۴:- له شبرغانه به یوه نل لیکه له دې عمومي نل لیکې سره لګوله کیږي، له هغې څخه د داخلیدونکې ګاز په اندازه ګازبه د کندهار مربوط سیمو کې د وړو نښلول شویو نل لیکو له لارې د هیواد نورو ښارونو ته ور کول کیږي.

۵:- د شبرغان د ګازو پاک خونې به رغوي، د هیواد د نفتو او تیلو د څاګانو په ترمیم او پاکولو کې به مرسته کوي او... دا ډول ډیري نورې ملي پروژې به په کار اچوي.

د۱۹۹۸ز په لومړیو کې یونیکا شرکت د دې پروژې لپاره په کندهار او کابل کې دفترونه پرانیستل او د هغې د تطبیق تصمیم یې پیل کړ، خو د دې کال په اګست میاشت کې د امریکا د کروز توغندي له برید سره یې بیرته د پروژې د څنډولو اعلان وکړ او په هیواد باندې د امریکا د بندیزونو په لړ کې یې دفترونه هم بیرته وتړل.

دا وخت طالبانو بیرته بړداس شرکت ته مخه کړه، د۱۹۹۹ز د اپریل په پای کې د معادن او صنعت وزیر مولوي جان محمد صیب، د پاکستان د تیلو او طبیعي زیرمو وزیر نثار علي خان او د ترکمنستان د مشر مرستیال په اسلام اباد کې یوه ناسته درلوده، او د همدې کال په سپتمبر کې طالبانو له یادو دوو اړخو سره د یوې چنایي شرکت سره د دې پروژې د ممکن توافق خبر هم ور کړ، او له بل لوري د مالیزیا له پیتروس شرکت سره هم لاس په کارو چې بیا د نړیوال ملي امنیت د بندیز په لړ کې دواړه ودرول شول.

له دې پرته د معادن او صنعت له وزارت سره د۱۹۹۹ز په مئ میاشت کې یو چنایي شرکت په پلخمري، هرات او کندهار کې د سیمنټو د تولید د څو پابریکو قراردادونه وکړل، د عامه

ترانسپورتي او رغنيزو چارو په قراردادونو يې هم له اړوندو ادارو سره بحثونه وکړل.

همداراز د مخابراتو په برخه کې هم د طالبانو خارجه وزارت له يوې امريکايي شرکت سره قرارداد کړی و چې د هغه له مخې د اتصالات شبکه بيا د کرزي په واکمنۍ کې فعاله شوه، ديته ورته د افغاني پيسو پولۍ قرار داد هم له تاجکستان سره تر سره شوی بلکې د افغانۍ سيکه چاپ ته تياره شوې وه د طالبانو د واکمنۍ له ړنګيدو وروسته کرزي د اسلامي امارت نوم په اسلامي دولت/جمهوريت بدلولو سره چاپ کړه.

تر اوسه که څه هم د طالبانو ډېر ترکيز په وسلواله جګړه باندې دی، خو ملت او ملي ګټو ته يې هم د پام وړ توجه کړې ده چې د خيريه مرستو څانګه، په کونړ کې يو کلينيک جوړول، په کندوز کې د برېښنا د رغولو پروژه، ترخپلې سلطې لاندې سيمو کې د مکاتبو څارنه، د ولسي خلکو د شخړو اوارولو لپاره شرعي محکمې، په تخار کې ۱۲۰۰بابه عمري ښارګوټې په بنسټ ښو دلوسره خلکوته د کار زمينه برابرول،د زرمت او غزني خينې سړکونه رغول، د ګازو د نل ليکې د پروژې ملاتړ او ولس ته د هغې د ساتنې داډ ورکول او......يې يوځو ښکاره بيلګې دي.

خو اشغالګرو له لومړي سره هم د ګواښونو او بنديزونو له لارې د هيواد ملت او ملي ګټو د پرمختګ مخه نيوله او بيا چې په هيواد کې د يو ښه او پر اسوده حکومت رامنځته کولو په نوم دلته دننه راغلل بياخو نو هر وګړي په خپلو سترګو هرڅه وليدل او وينې يې چې د طالبانو دپخوانيو هڅو په مټ رامنځته شوي هره رغول شوې برخه يې بيرته ويجاړه کړې او لا دوام ورکوي، کلي او ابادۍ يې ورانې کړې، باغونه او پټي يې له منځه يوړل، عمري ښارګوټی يې وران کړ، په پکتيکانکه کې يې ۱۲۰بابه بازارورن کړ، مدرسې-مکاتب او کلينيکونه يې وران او ولوټل او همدا نن رسنيو خبر ورکړ چې اجير دولت د کندوز هغو خلکو ته برېښنانه ورکوي چې د طالبانو تر واک لاندې سيمو کې اوسېږي بلکې لا هلته ملي عام المنفعه پروژې هم له منځه وړي.

نو په داسي حال کې څنګه لانور هم ولس په طالبانو باور ونکړي، د هيواد اصلي بچيان يې ونه بولي او څنګه د هغو په وړاندي له يرغلګرو او د هغو له فاسد رژيم سره ودريږي؟ لري نه ده چې د همدې ولس په لازيات ملاتړ به طالبان په هر ډګرکې د نړۍ برخليک ټاکونکې ثابت شي. وماذلک علی الله بعزيز.

# شام او غوطه

سیف عادل

د «شام» اطلاق نن پر سوریه او د هغې پر ګاونډیو هېوادونو لبنان، اردن او فلسطین باندې کیږي. د شام ځمکه د حشر او نشر ځمکه ده. په دغه ځمکه کې ډېر انبیاء علیهم السلام راغلي دي. شام او د شام اوسیدونکي یو خاص منزلت او مقام لري. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: ((کله چې د شام په اوسیدونکو کې خرابوالی راشي، نو په تاسو کې به هیڅوک د خیر رسوونکی نه وي. زما په امت کې به یوه ډله تر قیامته پورې فاتحه وي. هغوی ته به رسوا کوونکي هیڅ ډول زیان نه شي رسولی تر دې چې قیامت راشي.)) همدا وجه ده چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم په شام کې د اوسېدو پر اختیارولو وصیت کړی ځکه چې له قیامت سره به نږدې زمانه کې شام د اهل اسلام (مسلمانانو) قوي او مضبوط مرکز وي.

المعجم الأوسط للطبراني، ۷/ ۴۴۱ و سلسلة الاحادیث الصحیحة، ۵/ ۳٦٦، حدیث ۲۲۹۲

حضرت ابوالدردا رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي: د فتنو په ورځو کې به د مسلمانانو مرکز (غوطه) وي کوم چې د دمشق نامې ښار په یوه لوري کې دی او هغه د شام بهترین ښار دی.

مسند احمد ۵/ ۱۹ وسنن ابوداؤد، الملاحم، حدیث۴۲۹۸ وصححة الالباني في صحیح ابي داؤد

د حدیث په عربي متن کې د (فسطاط) لفظ راغلی دی، په اصل کې خیمې ته وایي خو دلته مراد ترې د مسلمانانو مرکز او د راجمع کیدو ځای دی. مسلمانان به په هغه لوی جنګ کې چې د مسلمانانو او یهودانو تر منځ کیږي، همدلته سره راجمع کیږي. غوطه د یوه ښار نوم دی کوم ته چې نن سبا غوطه دمشق ویل کیږي او دمشق یو مشهور ښار دی کوم چې اوس د سوریې (شام) د دولت دارالحکومت دی.

په حدیث کې مذکور جنګ به یا د مهدي له ظهوره وړاندې کیږي، یا به د مهدي په زمانه کې کیږي او یا به هم په کومه بله زمانه کې. نبي کریم صلی الله علیه وسلم د شام په ځمکه کې د اوسیدو ترغیب له دې امله ورکړی چې دا ځمکه د محشر او د مسلمانانو مرکز دی. یوه صحابي له رسول اکرم صلی الله علیه وسلم څخه مشوره وغوښته چې دی د کومې علاقې پر لور هجرت وکړي او چیرته اوسیدل اختیار کړي؟ نبي کریم صلی الله علیه وسلم د شام پر لوري د هجرت او هلته د اوسیدو مشوره ورکړه.

حضرت بهز بن حکیم له خپل پلار څخه او هغه له خپل تره څخه روایت کوي چې هغه فرمایلي: ما عرض وکړ: یا رسول الله صلی الله علیه وسلم! ما ته په کوم ځای کې د اوسیدو حکم کوې؟ نبي کریم صلی الله علیه وسلم د شام لور ته اشاره وکړه چې هلته. [جامع الترمذي، الفتن حدیث۲۱۹۲ وقال حدیث حسن صحیح وصححة الحاکم]

د قیامت له راتلو د مخه به د مؤمنانو اکثریت هلته هجرت کوي بلکې هر مؤمن به هلته لاړ شي.

حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما ویلي: یوه داسې زمانه به راشي چې هر مؤمن به د شام پر لوري ولاړ شي. المصنف لإبن ابي شیبة موقوفا۲۱۷/۴

د کتاب نوم ـ د نړۍ پای

مخونه: ۱٦۴_۱٦۵_۱٦٦

له همدې حدیثونو څخه د غوطه اهمیت معلومولی شو چې څومره مهم ځای او د مؤمنانو تمګاه ده. طواغیت له همدې امله پر همدې سیمه وحشت کوي تر څو اهل حق ترې سر راپورته نه کړي خو هغه څه (د کفارو او مسلمانانو تر منځ ستر جنګ په همدې سیمه کې) به خامخا پېښیږي د کوم څه چې په احادیثو کې وړاندوینه شوې ده او بری به هم د مؤمنانو وي.

بإذن الله، والله المستعان

# زما د نوم پوښتنه به نه کوې!

دکتور کفایت الله وردگ

حضرت مسلمة بن عبد الملک رحمه الله هغه مسلمان مجاهد امير وو چې په اموي دولت کې دده په مټو اسلام تر ډېرو ځایونو خپور شو او چې کوم لور ته به یې مخه کړه الله تعالی به ورته فتح ورکوله او له کامیابۍ سره به بېرته راګرځېدو ډېر فتوحات يې کړي دي د هغې له جملې نه قیساریه (قیصریه) ښارګوټی هم دی چې په اوسنی نقشه کې د اسرائیلو په علاقه کې په لواء حیفاء نومی ځای کې دی کله یې چې محاصره کړ و ددې د لوړو تعمیرونو، سختو دیوالونو او په سر باندې د امنیتي برجونو له امله مسلمانانو ته سخته وه چې دا ښار ګوټی فتح کړي ددې امله ډېر وخت مسلمانان ورته همدلته پراته وو او عزم یې کړی وو چې بغير له فتح به لدې ځای څخه نه ګرځي.

د ورځې په اوږدو کې به جنګ کېدو لکن مسلمانانو نشوای کولی چې په قلا ور وخیږي.

د شپې په تیاره کې چې ټول خلک به ویده کېدل نو د یوه مجاهد ذهن ویده نشو او پدې اړه یې فکر کاوه چې څنګه به دا قلعه فتح کړل شي نو یې ذهن دې لوری ته لاړ چې باید تر دیوال لاندې سوري وویستل شي او د هغه سوري له لارې څوک تر قلا تېر شي او مسلمانانو جنګیالیو ته دروازه راخلاصه کړي.

مجاهد یوازې پاڅېدو او پدې فکر باندې یې کار شروع کړو په پټه پټه به د شپې ورتلو او کار به یې کولو تردې چې یو وخت داسې راغلو چې سوری یې تقریبا پوره کړو او بیا ورڅخه را وګرځېدو.

بله ورځ چې د عادت مطابق مجاهدینو جنګ ته تیاری وکولو دا مجاهد منډه کړه او هغه پاتې سوری یې مکمل کړو او هغه لور ته ورڅخه ووتلو او مسلمانانو ته یې دروازه را خلاصه کړه.

ډېر وخت نه وو تېر شوی چې مجاهدینو وربانديې سخته حمله وکوله او په دروازه ور ننوتل پداسې حال کې چې رومیان په بیغمۍ سره په لوړو برجونو کې ناست وو د قلا د ننه یې د مجاهدینو تکبیرونه واورېدل او ماتې پکې ګډه شوه الله تعالی مسلمانانو ته فتح ورکړه.

تر فتح وروسته حضرت مسلمة بن عبد الملک رحمه الله مجاهدین را ټول کړل او په لوړ اواز یې پکې اواز وکولو: هغه مجاهد څوک وو چې دا سوری یې کړی وو او دروازه یې را خلاصه کړه؟

هېچا اواز ونه وکولو.

بیا یې وویل: چا چې دا سوری کړی وي هغه د را ووزي.




هېڅوک را ونه وتل.

صبا يې بيا همداسې خبرې ټولو مجاهدينو ته تکرار کړې لکن هېڅ اواز ونه کولو چې دا کار ما وکولو.

په دريمه ورځ حضرت مسلمة بن عبد الملک رحمه الله پاڅېدو ويې ويل: زه قسم کوم چې چا دا سورى کړي وي هغه به ماته د ورځې يا شپې په کومه برخه کې راځي او ځان به راته ښکاره کوي.

کله چې شپه شوه په خيمه کې ناست وو په تياره کې يو کس راغلو سلام يې واچولو.

حضرت مسلمة بن عبد الملک رحمه الله ورته وويل:

سورى تا کړى وو؟

هغه کس وويل: هغه کس چې سورى يې کړى وو ددې لپاره راغلى چې د محترم امير قسم پوره کړي او د خپر امير لپاره درى شرطونه لري...

څه شرطونه؟

شرطونه دادي چې ...

د نوم پوښتنه به يې نه کوې.

د مخ ښکاره کولو غوښتنه به ورڅخه نه کوې.

څه انعام به نه ورکوې.

لدې خبرو سره يې حضرت مسلمة بن عبد الملک رحمه الله حيران کړو ...

مجاهد په تياره کې په شا لاړو او بېرته د مجاهدينو په خيمو کې له مسلة بن عبد الملک رحمه الله څخه ورک شو ...

حضرت مسلمة بن عبد الملک رحمه الله حيران ودرېدو له سترګو يې اوښکې راغلې او دا آيت يې تلاوت کړو چې الله تعالى فرمايي: مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُمْ مَنْ قَضَى نَحْبَهُ وَمِنْهُمْ مَنْ يَنْتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلًا (۲۳). سورة الاحزاب

ترجمه: ځينې له مؤمنانو څخه (داسې) سړي دي چې رښتيا کړې يې ده هغه خبره چې عهد کړى وو دوى له الله تعالى سره په هغه باندې (چې ثبات، استقامت دى په جهاد کې) پس ځينې له دوى هغه دي چې تر سره يې کړ نذر خپل (چې شهيدان شول) او ځينې له دوى هغه دي چې انتظار کوي (دغه مرګ يا شهادت ته) او بدل يې نه کړ (عهد خپل يوه ذره هم) بدلول. کابلى تفسير

لدې وروسته به مسلمة بن عبد الملک رحمه الله کله کله په دعاء کې سوال کولو چې ما له هغه کس سره د قيامت په ورځ پاڅوه چې دا سورى يې کړى وو.

د هغه له اخلاص نه متاثر شوى وو ...

مراجع:

عيون الاخبار للامام قتيبه رحمه الله

مختصر تاريخ دمشق



# ولس باید نور

## دغفلت له خوبه راپاڅي!

فایض

زه ځان د تاریخ یو ډېر کوچنی شاگرد؛ خو مینه وال گڼم. ما به یقیناً د تاریخ هغومره پاڼې نه وي اړولي، لکه څرنگه چې یې د تاریخ د مطالعې یو شاگرد باید واړوي؛ خو د تاریخ هغه ډېره لږه مطالعه مې هم چې کړې؛ نو دا راته څرگنده شوې چې دا اوسنی کوم حالت چې روان دی، دا به د تاریخ په مختلفو پړاوونو کې بې ساري وي. تر ټولو نه مزدور ترینې څېرې شاه شجاع د مجاهدینو مشرانو ته د خپل نیکه توره را واخیسته او مخې ته یې ورته کېښوده او هغوی یې پرې وپوهول چې که دوی څه و نه کړي؛ نو زما لاسونه او پښې تړلې دي. پر یعقوب خان هم چې کله انگریزانو د گندمك تړون لاسلیکاوه؛ نو دوه خیمې یې ودرولې چې پر یوه د انگریزانو او پر بله د افغانستان بیرغ ودرول شو، کله یې چې د گندمك د معاهدې متن ورته د لاسلیك له پاره مخې ته کېښوده؛ نو هغه په ترخه لهجه ورته وویل چې تاسې څه حق لرئ چې یو دغسې معاهده راباندې لاسلیکوئ؟ د انگریزانو کسان ورو له خیمې نه ووتل او د یعقوب خان خسر سردار یحی خان ته یې وویل چې اوس نو ستا وار دی چې ورشې او زوم دې قانع کړې. هغه چې له انگریزانو سره توده راشه درشه درلوده،. د یعقوب خان خیمې ته ننوت او مداحانه لهجه یې ورته وویل چې ستا ژوند په خطر کې دی او د ټولې کورنۍ ژوند په خطر کې دی، په دې توگه یې هغه چې هسې هم رواني ناروغ و تخویف کړ او دې ته یې راضي کړ چې معاهده لاسلیك کړي. همدارنگه عبدالرحمن خان څلویښت ورځې په چهلستون ماڼۍ کې له مارتیمر ډیورنډ سره ناندرۍ ووهلې او اوس مؤرخین پر دې باوري دي چې عبدالرحمن ورسره شفاهي هوکړه کړې وه؛ خو لیکلې معاهده یې ورسره نه ده لاسلیك کړې. افغان مورخ ارواښاد پوهاند دوکتور حسن کاکړ خو ویل چې د عبدالرحمن خان په لاسلیك کومه معاهده نه ده موجوده. البته په دې ټولو کې یو گډ ټکی موندلی شو او هغه دا چې پر دې ټولو باندې له حده زیات فشار موجود و. پر هغه بې ننگه شاه شجاع هم د لاهور په معاهده کې د فشار ټکی موجود و (۱۸۳۸) او تر هغې د مخه په (۱۸۳٤) کې له رنجیت سنگ سره په معاهده کې د تشویق تر څنگ، فشار ملگری و، ان چې رنجیت ترینه د کوه نور الماس په زوره واخستل.

عجیبه ده چې له امریکا او ناټو سره په شوې امنیتې لوزنامه کې دومره عجله ملگرې وه چې په څلرویشتو ساعتو کې دننه دننه لاسلیك کړای شوه.

زما په اند د یوې دغسې لوزنامې لـه پـاره کـه ډېره بې ایماني هم کېدله، باید د ملت په کچه یو رفراندم شوی وای. بیا چې حکومت دا لوزنامه لاسلیك کـړه ملي شورا چې هـر وکیل غتې غتې ادعا کـوي چې د ولـس نماینـده دی، پـه دې کار کې لوټه په اوبـو کـې کېښـوده او پـرې تېـره شـو. اوس لا کله کله دا درواغجن غږ هم پورته کړي چې بایـد دا لوزنامـه لغو شي؛ خو دا غږ هم هغه یـو څـو د ګوتـو پـه شـمار وکـیلان کوي چې هغه هم د دې لوزنامې د تأییـد مخـالف وو، یـا یـې هغه وکیلان کوي چې غواړي له دې لارې کوم امتیاز ترلاسـه کړي. واقعاً د یوې دغسې لوزنامې لاسلیك هم زموږ حکومت ته د شرم خبره ده او هـم زمـوږ هغـو وکیلانـو تـه چـې پـر دې معاهده یې د تأییـد مهرونـه ولګـول. دوی بـه خـدای تـه څـه ځواب وایي او تـاریخ تـه بـه څـه ځـواب وایـي، ورځـه پـر دې خوبولي ملت خو یې هسې هم چورت نه دی خراب؛ ځکه کـه دنیا ورانه شي؟ که ودانه شي ملت په خواږه خوب ویـده دی او یوه ورځ یې هم یو داسې مدني حرکت و نه کړ چې سړي ته دا هیله پیدا شوې وای چې یاره که خیر وي، ملت نـور را ویښ شوی. دلته ته سړي ته د عبدالرحمن بابا هغـه خبره ور یاده شي چې:

غرونـه غرونـه خـوب پـه خـاځکي اوبـه درومي
یـار پـه سـیند زمـا د اوښـکو بیـدار نـه شـو

د افغانسـتان ولـس کـرار ناسـت دی؛ خـو ګاونـډیان او نړیوال یې د برخلیك خبره کوي، افغانان خبر هم نـه دي چې بلك واټر یې د معدنونو د برخلیك خبره کوي، افغانان خبر هم نه دي چې دنیا څو بغرۍ ده؛ خو معدنونه یې په یـوه پلمـه او بله چلول کېږي. اخر دا څه حال دی.

حکومت خو بل چا ټاکلی، بل چا راوستی، طبعاً بـه هغـه څه کوي چې بهرني ملاتړي یې غواړي، که ملت پـه دې تمـه وي چـې اوس بـه بابـا غوښـې ډوډۍ راوړي، زه فکـر کـوم دا هسې د خوب لیـده دي او خـوب شرط نـه دی چـې خامخـا عملي تعبیر ولري.

امریکا یو ځل د تروریزم د ټکونې په پلمه ۱۲۰۰۰۰ پـوځ راوست، ناټو یې راوسته بیا یې د انتقال پروسـه شروع کـړه او هغه یې سر ته ورسوله او بیا یې له یو محـدود شـمېر ور اخـوا خپل پوځونه و ایستل او اوس هغه دی ولسمشر ټرمـپ بېرتـه افغانستان ته د خپلو پوځونو د را استولو لـړۍ پیـل کـړې ده. همدارنګه یـوه ډلـه لـه پښـو غورځـوي او بلـه راولي او پـه دې توګه خپـل پـلان غځـوي. امریکـا د افغانسـتان لـه پـاره کـوم داسې پلان نـه لـري چـې دا هېـواد لـه دې اوسـنیو غمـوونکیـو حالاتو نه وژغوري، یوه ورځ وایي له طالب سره سوله کوم، بله ورځ وایـي ورسره خـبرې نـه کـوم، درېیمـه ورځ وایـي راځـئ دکابل له حکومت سره خـبرې وکـړئ، یـوه ورځ پـه قطـر کـې دفتر مهم بولي او بله ورځ یـې تـړي. لـه دې نـه دا معلـومېږي چې امریکا هسې وخت تېروي او فقط په افغانستان کې خپـل حضور ته پلمـه پیـدا کـوي، همـدا وجـه ده چـې د افغانسـتان قضیه اوس پر کورني سربېره، سیمه ییـزه او نړیـوال بعـد هـم لري. په افغانستان کې د امریکا لـه حضـوره هـم د افغانسـتان ګاونـډیان اندېښـنه لـري او هـم د سـیمې پـه کچـه هېوادونـه، خصوصاً چین او روسیه چې دا دواړه هېوادونـه بیـا پـر سـیمه ییـزې کچـې سربېـره نړیـوال وزن هـم لـري؛ ځکـه د امریکـا اندېښنه اصلاً لـه همـدغو دوو هېوادونـو نـه ده، چـین هـم پـه اقتصادي برخه کې او هم په نظامي برخه کې چټك پرمختـګ کوي. همدارنګه روسیه اوس په نظامي ځغل کې امریکـا تـه په یوه داسې قوت بدله شوې چې امریکا ته یې اندېښنې پیدا کـړې دي ان چـې ټرمـپ د ۲۰۱۸ کـال پـه سـتراتېژۍ کـې دا دواړه هېوادونه خپل سیالان وبلل. دا په حقیقـت کـې پـر دې خبره اعتراف دی چې امریکا پـر دې بـاور شـوې چـې نړیـوال حیثیت ته یې جدي اندېښنې پیدا شوې دي؛ ځکه امریکا خو ګڼله چې نړۍ یو قطبي شوه او دا کار د امریکا په ګټـه وشـو؛ خـو اوس چـې ګـوري یـو قطبـي تـوب یـې ننګـول کېـږي؛ نـو طبیعي خبره ده چې اندېښنې ورته پیدا کېږي.

امریکا د چین او روسـیې د مهـارولو لپـاره افغانسـتان د ځان له پاره ارزانه اواسانه سنګر بولي.



# افغانستان د (۲۰۱۸) میلادي کال د فروري په میاشت کې

لیکنه: احمد فارسی

یادونه: دغه لیکنه یوازې له هغو پېښو او زیانلړونو جوړه ده چې دښمن په هغوی اعتراف کړی. دا هم د یادونې وړ ده چې بهرني او مزدور دښمن ته د بېلابېلو تلفاتو او خساراتو اوښتلو او په هغوی د ترسره شوو بریدونو او نورو پېښو په اړه کره خبرونه او معلومات د افغانستان اسلامي امارت له رسمي پاڼې څخه ترلاسه کولای شئ)

د ۲۰۱۸ میلادي کال د فروري په میاشت کې د اسلامي امارت مجاهدینو په ګډ دښمن ټول ټال ۶۱۹ عملیات ترسره کړي چې پکې د دښمن ۴ تیارې را غور زول شوي او ۱۶۸ عرادې او نظامي وسائل له منځه تللي دي. د همدې میاشتې په اوږدو کې ۱۶ تنه اشغالګر او ۱۱۸۹ تنه مزدورعسکر وژل شوي. په دې برسېره ۲۴ اشغالګر او ۷۲۴ تنه اجیر عسکر ټپیان شوي هم دي.

د دې ټولو په اړه د اسلامي امارت په رسمي پاڼه الاماره کې ځانګړي راپورونه شته، دلته یوازې د نمونې په توګه څو پېښې په لنډیز را اخلو:

### اشغالګر دښمن ته اوښتی ځاني زیان:

د فروري په میاشت کې کابو ۱۶تنه اشغالګر مړه او ۲۴ نور ټپیان شول. د راپورونو په اساس د چهار شنبې په ورځ د همدې میاشتې په ۲۱مه د فراه په بالا بلوک ولسوالي کې ۱۴ اشغالګرو ته د مجاهدینو په برید کې مرګ ژوبله واوښته. شپږ ورځې وروسته همدا ځواکونه یو وار بیا د لغمان په قرغه ولسوالي کې له درنې مرګ ژوبلې سره مخ شول. خو متاسفانه چې دروغجن دښمن په پوره بې شرمۍ په دې ټولو تلفاتو سترګې پټې کړې او د یو عسکر په وژنه یې هم رسمي اعتراف ونکړ، چې په دې سره د هغو وژل شوو اشغالګرو شمېر چې په ۲۰۱۸ کال کې یې په وژل کېدو اعتراف شوی تر یو تن پورته نشو.

### اشغالګر دښمن ته اوښتی مالي زیان:

د فروري په میاشت کې د مجاهدینو بریدونه کورني او بهرني دښمن ته د نه جبرانېدونکي مالي زیان لامل شول. د همدې میاشتې په اوږدو کې د دښمن ۴ الوتکې را نسکورې کړل شوې او شاوخو ۱۶۸ ټانګونه او نور ډوله نظامي و سائط یې له منځه یو وړل شول. د راپورونو له مخې د څرخکو د راغورزولو په لړ کې د شنبې په ورځ، د فروري په ۱۰مه د تخار په درقد ولسوالي کې د هندې اشغالګرو یو هلیکوبتر د مجاهدینو په ډزو را نسکور شو.

### مزدور دښمن ته اوښتی ځاني زیان:

څنګه چې وړاندې وویل شول د فروری په اوږدو کې ۱۱۸۹تنه اجیران د مجاهدینو په بیلا بیلو بریدونو کې وژل شوي چې دلته ترې د بېلګې په توګه د څو وژل شوو یادونه کوو:

د شنبې په ورځ د فروري په ۳ مه د فراه ولایت د پشت کوه ولسوالۍ څارنوال، وریسې د جمعې په ورځ، د همدې میاشتې په ۹مه د غزني په ښار کې د مزدورو عسکرو د ټولي قومندان د یو چریکې برید په ترځ کې

ووژل شو. د پنجشنبې په ورځ، د فروري په ۱۴مه د لوګر په ولایت کې د اربکیانو د قومندان مرستیال ووژل شو. د فروري په ۲۰مه د پولیسو یو قومندان د ننګرهار په مرکزي محبس کې ووژل شو. یوه ورځ وروسته د جوزجان په ولایت کې د بدنامو دوستمي ملیشو یو قومندان د خپل بد عمل په سزا ورسول شو. د همدې میاشتې په ۱۸مه نېټه د پروان په مرکز کې د ملي امنیت یو کار کوونکی ووژل شو. درې ورځې وروسته د کاپیسا ولایت د امنیت مدیر هم ووژل شو. د یکشنبې په ورځ ، د فروري په ۲۵مه د مزدوري ادارې د اجرائیه رئیس مشاور د ښابل په ښارکې ووژل شو، او ورپسې د دسې شنبې په ورځ، د فروري په ۲۷مه د اشرف غني یو ساتونکی د بلخ په ولایت کې ووژل شو.

**د ګډ دښمن لخوا د اولس ځورونه:**

د بې کسه اوبې وسه اولس ځورول چې د مغلوب دښمن لپاره یوه وړیا غچ اخستنه ده د فروري په میاشت کې هم د پخواپه څیر روانه وه CPAG .یا د ملکي خلکو د ساتنې او Rعدالت ډلې د راپور له مخې په تېره میاشت کې کم تر کمه ۶۰۰ تنه ملکي افغانان وژل شوي او ټپیان شوي دي. د فرورۍ میاشتې لومړۍ پېښه چې پکې بې دربغه ملکي خلک شهیدان او ټپیان شول د فاریاب د خواجه سبز پوش په ولسوالۍ کې را منځته شوه. په دغه بمبار کې چې د فروري په لومړۍ ورځ ترسره شو د یادې سیمې لسګونه اوسېدونکې پکې شهیدان او ټپیان شول. په همدې ورځ د کندهار په میوند ولسوالي کې هم کم تر کمه ۲۷ تنه ولسي خلک د سپیشل پورس په بریدونو کې په شهادت ورسول شول. ورپسې د شنبې په ورځ، د فرورۍ په ۳مه اشغالګرو د هلمند په رباط ولسوالي کې د دیش بازار په ټولیزه توګه بمبار کړ.

د چهار شنبې په ورځ، د فروري په ۷مه نېټه د غزني ولایتي شورا وویل چې د هغو عملیاتو په ترڅ کې چې په دې وروستیو کې د مزدوري اداري د عسکرو لخوا ترسره شوي یواځې ملکي خلکو ته زیان رسېدلی او هغه څوک پکې هیڅ نه دي په نښه شوي چې حکومت یې ادعا کوي.

په دې لړ کې د پنجشنبې په ورځ، د فروري په ۸مه رسنیو وویل چې د خوست په علي شیرو ولسوالي کې د اشغالګر دښمن او د دوی د مزدورانو د عملیاتو په ترڅ کې د یوې کورنۍ ۷ تنه په شهادت رسېدلي.

**د بیارغونې د مدعیانو په لاس د عمري ښارګوټي ورانېدل:**

تېره میاشت د تخار په ولایت کې د عمري په نوم ښارګوټی ودان او د خلکو استفادې لپاره اولس ته وسپارل شو، مګر د پنجشنبې په ورځ د فروري په ۸مه د یاد ولایت اجیرو ځواکونو په دغه ښارګوټي حمله وکړه او کاملا یې وران کړ. سره له دې چې دغه ښار د سیمئیزو خلکو ملکیت و خو دوحشت او نفرت کرونکې اداري ټوپکیانو په ډېره بې رحمۍ ونړاوه او د هغو خلکو مالونه یې هم لوټ کړل چې په لس او شل روپۍ قرضه یې د لرځه ګتې وټې په امید را یو ځای کړي ول.

**منصوري عملیات:**

د فروري په اوږدو کې د مجاهدینو لخوا ۶۱۹ لوی او واړه عملیات تر سره شوي دي چې دلته د نمونې په ډول د څو عملیاتو یادونه کوو:

د شنبې په ورځ د همدې میاشتې په ۱۰مه د اسلامي امارت مجاهدینو د هلمند په ناوه کې سنګوریان چې د خلکیانو مهال جباري ملیشو څخه تشکیل شوي په نښه کړل چې له امله یې لسګونه لار ورکې ټوپکیان ووژل شول. یوه ورځ وروسته دغه د تاریخونو بدنامه ملیشه یو وار بیا د مجاهدینو د کلک ګوزار په نتیجه کې له درنو ځاني او مالي زیانونو سره مخ شوه او یو نفوذي مجاهد پکې ۱۶تنه سنګوریان په خپل پټنځای کې ووژل. له بلې خوا د شنبې په ورځ، د فروري په ۱۰مه د درقد په ولسوالي کې مجاهدینو یوه هندې څرخکه را نسکوره کړه. ورپسې د سې شنبې په ورځ، د همدې میاشتې په ۱۳مه د کندهار په نېش ولسوالي کې د مجاهدینو او مزدورو عسکرو تر منځ سخته نښته را منځته شوه چې له امله یې د صلیب مزدوري اداري ګڼ کسان مړه او ټپیان شول.

همدا راز د شنبې په ورځ، د فروري په ۱۷مه د فراه په بالا بلوک ولسوالي کې د نظم عامه یو مهم مرکز سقوط کړل شو، په بل ځل عملیاتو کې چې د همدې ولسوالۍ په پوستو ترسره شول د سې شنبې په ورځ، د فروري په ۲۰مه کم تر کمه ۳۵ پولیس ووژل شول. او ورپسې په همدې ورځ د مزدورو عسکرو په درېو نورو پوستو هم د همدې ولایت په نادعلي ولسوالي کې د اسلامي امارت د واکمنۍ بیرغ و درول شو.

د چهار شنبې په ورځ، د فروري په ۱۲مه د مجاهدینو په یوه برید کې د بالابلوک په ولسوالي کې ۵ تنه اشغالګر عسکر مړه او ۲ نور ټپیان شول. د پنجشنبې په ورځ، د همدې میاشتې په ۲۲مه د هلمند په ګرشک ولسوالي کې په پولیسو یو استشهادي برید تر سره شو چې له امله یې لسکونه پو لیس مړه او ټپیان شول. دوه ورځې وروسته د شنبې په ورځ یو وار بیا د نادعلي په ولسوالي کې د عسکري کنډک په اسمان د استشهادي بریدونو لوخړې پورته شوې او دښمن ته یې ستر ځاني او مالي ټکان ورکړ. په همدې ورځ د لشګرګاه په دوومه حوزه هم د مجاهدینو لخوا بریدونه وشول چې پکې یو لوی شمېر استخباراتي کارکوونکي مړه او ټپیان شول. همدا راز د فروري ۲۷مه ورځ د فاریاب په خواجه سرپوش ولسوالي کې د یو قومندان په ګډون د ۱۱ اربکیانو د وژل کېدو شاهده وه.

### د نویو ځواکونو لېږد:

په تېرو میاشتو کې د امریکا د نوو سراتېژیو له مخې یو شمېر اشغالګر عسکر افغانستان ته راوستل شول، مګر د یکشنبې په ورځ، د فروري په ۴مه پنټګان اعلان وکړ چې د نورو عسکرو د لېږلو اراده نه لري. په دې اعلان برسېره د شنبې په ورځ، د همدې میاشتې په ۲۴مه د امریکا ۸۰۰ په نظامي برخه کې ځانګړي مشاورین افغانستان ته راغلي دي. دا په داسې حال کې ده چې له یوې خوا دومره لوی شمېر عسکر دلته راوړل کېږي او له بلې خوا بیاهم ایټالوي عسکر ونه توانېدل چې په فراه کې له مجاهدینو سره مقابله وکړي چې بالاخره یې د فروري په ۲۶مه نېټه دغه ولایت پرېښود او وتښتېدل.

### په مزدوره اداره کې د مجاهدینو نفوذ:

تر دې له مخه هم په دې اړه ډېر اعترافونه شوي چې اسلامي امارت توانېدلی د دښمن په لیکوکې نفوذ وکړي. په دې لړ کې د یکشنبې په ورځ د فروري په ۴مه د اجیري اداري رئیس وویل چې: په حکومت کې دننه داسې خلک شته چې له طالبانو سره یې مرسته کړې او اوس هم له هغوی سره په هدفته رسېدو کې همکاري کوي.

د دې تر څنګ د شنبې په ورځ، د فروري په ۱۷مه د کابل اداري مشرتابه ویلي چې: اوضاع دومره ترینګلې شوې ده چې موږ نشو کولای له ارګه د باندې یوه عادي غونډه لا هم وکړای شو. له بلې خوا په همدغه نېټه الماني استخباراتو وویل چې طالبان دومره زورور شوي چې که د کابل په هره برخه کې وغواړي عملیات تر سره کړي کولای شي.

همداراز په دې وروستیو کې موسسو او مختلفو سازمانونو په خپلو سرویو او څېړنو کې هم د اسلامي امارت بریا او غښتلتیا ډاګېزه کړې او هغه سیمې یې یادې کړې دي چې اوس پرې اسلامي امارت حاکم دی. په دې لړ کې د سې شنبې په ورځ، د فروري په لومړۍ نېټه د سیګار موسسې اعلان وکړ چې د ۲۰۱۷ کال په نسبت سږ کال د حکومت په لیکو کې د طالبانو نفوذ دوه برابره زیات شوی. راپور زیاتوي چې تېر کال طالبان وتوانېدل چې د هیواد زیاتي سیمې د اجیرو ځواکونو له وجوده پاکې کړي.

### د مزدورې اردو لخوا له مساجدو او مدارسو سوء استفاده او د هغو تخریب:

پخوا هم څو څو واره له پخو شواهدو سره دا حقیقتونه رابرسېره شوې چې مزدوره اردو او پولیس له مکاتبو او مدارسو څخه د مجاهدینو په ضد د سنګر په توګه استفاده کوي. دا ځل هم دپنجشنبې په ورځ، د فرورۍ په لومړۍ نېټه پژواک خبر ورکړ چې د مزدورې اردو عسکرو د لوګر د برکې برک ولسوالي په یو جامع مسجد کې پوسته جوړه کړې او لمونځ کوونکې یې په مسجد کې له لمانځه کولو منعه کړي دي.

له بلې خوا د امریکا مزدورو عسکرو د سې شنبې په ورځ، د فروري په ۶مه د ننګرهار په شېرزادو ولسوالي کې یوه دیني مدرسه تخریب او شاګردان یې ووهل. دېته په ورته یو بله پېښه کې د مزدورې ادارې ځواکونو د دوشنبې په ورځ، د همدې میاشتې په ۱۹مه د لغمان په الینګار ولسوالي کې هم یوه مدرسه له خاورو سره خاوري کړه.

### د سولې په اړه خبرې:

ارګ او امریکا وروسته له هغه چې په نظامي او سیاسي ډګر کې له تاریخي ماتې سره مخ شول خبرداری ورکړ چې له طالبانو سره یې د خبرو او مذاکراتو دروازه تړلې ده او په راتلونکې کې به یې د جګړې په ډګر کې ورسره معلوموي. په دې لړ کې د چهارشنبې په ورځ، د فروري په ۷ مه د امریکا سیاسي څېړونکو وویل چې دا څرګندونې داسې مهال کېږي چې ارګوال او امریکایان د پرله پسې ماتیو له امله په غوسه دي. خو له دې ګواښه لا ډېر وخت تېر نه و چې په ۲۵مه نېټه د امریکا د بهرنیو چارو وزارت مرستیال اعلان وکړ چې: طالبانو ته اوس هم دا فرصت شته چې د افغانستان کشاله د مذاکراتو له لارې حل کړي. ورپسې د کوڅه واکې ادارې مشر- غني هم د خپل بادار پرېکړې ته په درنښت خپله خبره بدله کړه او د چهار شنبې په ورځ، د فروري په ۲۸مه یې د سولې په اړوند جوړې غونډې ته په وینا کې وویل چې : تیار دی بې له کوم شرطه اسلامي امارت د یو سیاسي ګوند په توګه ومني.

اسلامي امارت د امریکا د بلنې په غبرګون کې وویل چې که دغه هیواد ربښتیا هم په خپله خبره کې رښتونی وي، نو په قطر کې د طالبانو له رسمي دفتر سره دې اړیکه ونیسي.

### مزدورې ادارې ته د روسیې خبرداری:

په افغانستان کې د روسیې سفیر د چهار شنبې په ورځ، د فروري په ۷مه د ملي امنیت د مشاور حنیف اتمر د هغو څرګندونو په جواب کې چې ویلې یې و، روسیه او ایران له طالبانو سره مرستې کوي اتمر ته په خطاب وویل چې: د خپلې ناکامۍ پړه په بلچا مه وراچوئ! ده زیاته کړه چې امریکا او په کابل کې د دوی ادارې له طالبانو سره په جګړه کې ماته خوړلې او اوس د دې پرځای چې نوروته ګوته ونیسي باید د ناکامۍ پړه په خپله غاړه واخلي.

### د ښوونې په برخه کې همکاري:

سره له دې چې دښمن مجاهدین د مکاتبو، مدارسو او ښوونیزو مرکزونو په تړلو تورنوي، مګر مجاهدینو نه یواځې دا چې په عمل کې د دوی دا ادعا غلطه ثابته کړې، بلکې د سې شنبې په ورځ، د فروري په ۱۳مه د اسلامي امارت مطبوعاتو د اسلامي امارت د ښوونې او روزنې د کمیسیون او د هلمند د پوهنې د مسؤلینو تر منځ له یو بل سره د پوهنې د پراختیا په برخه کې د همکارۍ د توافقنامې لاسلیکېدلو خبرونه خپاره کړل. په دې موافقتنامه کې دواړو لوریو د مکاتبو په خلاصون او د اسلامي امارت له لورې د ښوونېز بهیر په پرمخ بیولو موافقه شوې ده.

### امریکایي اولس ته د اسلامي امارت لیک:

د چهار شنبې په ورځ، د فروري په ۱۴مه اسلامي امارت د امریکا اولس ته لیکل شوی یو لیک خپور کړ چې پکې د امریکا خلک په افغانستان کې له روانو پېښو او واقعیتونو خبر کړل شوي او ترې غوښتل شوي ول چې خپل حکومت او جنګ غوښتونکې واکداران دې له جګړې ور وګرزوي تر څو جګړې ته د پای ټکی کېښودل شي او د سولې او خبرو اترو لپاره لاره هواره شي. پاته دې نوي چې یوه میاشت له مخه اسلامي امارت د امریکا د جمهور رئیس په نوم هم یو سرخلاسی لیک لېږلی و. دغو لیکونو د امریکا په اولس ډېر زیات اثر اچولی او هلته له خپرېدونکو مطبوعاتو په ډاګه کېږي چې اوس حکومت د اولس تر سخت فشار لاندې دی. په دې لړ کې د دوشنبې په ورځ، د فروري په ۲۶مه نېټه د امریکا نېشنل انټرسټ مجلې ولیکل چې امریکا هیڅکله نشي- کولای په افغانستان کې جګړه وګټي. همدارنګه دوه ورځې وروسته واشنټن پوسټ هم ولیکل چې امریکا باید همدا اوس له افغانستانه را ووزي.

### ښځینه مامورینې او له دوی څخه د لوړ پوړو چارواکو غوښتنې:

څه موده وړاندې داسې ویډیو ګانې خپرې شوې چې پکې په څرګنده معلومېږي د حکومت لوړ پوړي چارواکې له هغو ښځو څخه چې غواړي په دولتي ادارو کې دنده ترلاسه کړي جنسي استفاده کوي. په دې لړ کې د فروري په ۶مه په جوزجان کې ښځینه مامورینو وویل چې په دې ولایت کې هم د تقرري پر مهال د حکومتي چارواکو لخوا له ښځو څخه د ناوړه کارو غوښتنه کېږي.

### د کابل ادارې د بدنامۍ یو بل ویار:

صلیبې جګړې ته په کرایه نیوله شوې دغه اداره د پیل له ورځې تر اوسه د نړۍ د فاسد ترینو هیوادونو د سرپه کتار کې راځي. دا ځل هم د پنجشنبې په ورځ، د همدې میاشتې په ۲۲مه د نړیوال شفافیت ادارې اعلان وکړ چې افغانستان په نړۍ کې څلورم ترټولو فاسد هیواد دی.

### له تاپي پروژې څخه د اسلامي امارت ملاتړ:

د جمعې په ورځ، د فروري په ۲۳مه د څلورو هیوادونو د مشرانو لخوا د تاپي د ګاز پروژې پرانسته وشوه. اسلامي امارت دا عام المنفعه پروژه خپله لاسته راوړنه وګڼله او ویې ویل چې د افغانستان له لارې د دغې لیکې د تېرېدلو لومړنۍ خبرې او مذاکرات د اسلامي امارت د حاکمیت پر مهال پیل شوي ول. په دې برسېره اسلامي امارت له یادې ټولګټې پروژې د ملاتړ اعلان وکړ او هیله یې څرګنده کړه چې د دې ګټه به نېغ په نېغه د افغانستان اولس ته ورسېږي او دښمن به ترې سوء استفاده ونکړي.

### له خبریالانو سره د اجیري ادارې چلند:

سره له دې چې په افغانستان کې ډېرى مطبوعات د اشغالګرو او یا موسساتو لخوا را منځته شوي او دنده یې د مجاهدینو پر ضد دروغجن تبلیغات خپرول دي، خو په دې برسېره هم ګڼ شکایتونه شته چې خود سري حکومتي چارواکي یې د معلوماتو را ټولولو ته نه پرېږدي. په دې لړ کې د فروري په ۶مه د ارزګان ولایت خبریالانو وویل چې ولایتي چارواکي ورسره په دغه ولایت کې د پېښېدونکو حوادثو په اړه هیڅ ډول معلومات نه شریکوي. تر دې خبر خپرېدو وروسته له جورنالستانو د ملاتړ ادارې هم وویل چې د دوه سرې ادارې له رامنځته کېدو تر اوسه ۱۵۰ رسنۍ له کاره لوېدلې دي.

## غوسه مه کوه

ابو هريره رضي الله عنه وايي: يوه سړي رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وويل: وصيت راته وکړه، هغه ورته وويل: غوسه مه کوه، هغه سړي بيا بيا ورته وويل: وصيت راته وکړه، هغه همدا ورته ويل: غوسه مه کوه. عن أبي هريرة رضي الله عنه: أن رجلا قال للنبي صلى الله عليه وسلم أوصني قال: لا تغضب، فردد مرارا قال: لا تغضب. أخرجه البخاري في صحيحه كتاب الأدب/ باب الحذر من الغضب ٥/ ٢٢٦٧.

امام الخطابي رحمه الله د دې حديث په شرحه کې ليکي: د ( لا تغضب) يعني غوسه مه کوه جملې مطلب دا ده چې له هغو اسبابو ځان وژغوره چې غوسه راپاروي او له نفس غوسې نه منعه نه شي کيدلی، ځکه غوسه طبيعي شی ده له طبعيته نه شي ليري کيدلی، او رسول الله صلى الله عليه وسلم به چې کله چاته وصيت کاوه د هر سړي حالت ته به يې کتل او د هغه له حالت او مزاج سره سم به يې هغه ته وصيت کاوه، داسې برېښي چې دا سړی غوسه ناک و ځکه يې څو ځله همدا يوه خبره ورته وکړه چې: غوسه مه کوه. فتح الباري شرح صحيح البخاري



# د حوثیانو ستر وحشت

# او د یمن مظلوم ولس

حسن زوی

۳ کاله وړاندې چې په یمن کې حوثي باغیانو دولتي اداره ړنګه او په زور پرواک قابض شول نو پدې اړه په لیکلي مضمون کې ما لیکلي و چې د بل په اشارو او لمسون راپورته شوي او د نورو داهدافو د تحقق لپاره جنګېدونکي حوثیان هیڅکله هم ټول هېواد ته د خپل واک پر غزولو ؛ د ټول هېواد د قبضه کولو او د منظمې ادارې په جوړولو نه شي توانېدای بلکې دا هېواد چې تر ډېره حده د مذهبي تعصباتو او منافرت نه خوندي پاتې و او س به پکې د مذهبي منافرت او تعصباتو ریښې خپرې او ډېرې مضبوطې شي چې همدا به پدې هېواد کې د اوږد کورني جنګ لامل او ورسره به د سیمې دوه مهم اسلامي هېوادونه ایران او سعودي عربستان هم په جنګ کې راښکېل شي چې دا به د شام نه پس ددې دواړو هېوادونو یو بل ته د مخامخ کېدو دوهم ډګروي ؛ ورسره به په ټول منځني ختیځ کې د شیعه او سني تعصبات او دښمني زیاتېږي او دلته به هم د شام په څېر بهرنو مداخلتونو ته لار برابرېږي.

نن په یمن کې همدا حالت دی او ټول هغه څه پکې رامنځته شویدي چې د کومو په باره کې اندېښنې ښکاره کېدې. حوثیانو دولتي اداره ړنګه کړه خو په مقابل کې یې منظمه دولتي اداره رامنځته نکړای شوه ؛ نو یو لوی انارشیزم رامنځته شو ؛ ددې هېوادګڼ او سېدونکي له خپلو سیمو او کورونو بې ځایه شول ؛لسګونو زرو انسانانو خپل ژوند له لاسه ورکړ خلک د سخت فقر سره مخامخ شول ؛ د خلکو د ځان ،مال او عزت مصئونیت د سخت خطر سره مخامخ شو ؛ د شیعه او سني د دښمنۍ نه خوندي دا هېواد او س پدې جورې دښمنۍ اخته دی ؛ ایران او د لبنان حزب الله د حوثي شیعه ګانو سره په څنګ کې ولاړ دي او هر ډول نظامي او مالي مرستې ورسره کوي او د یمن دولت چې په سنیانو یاد ېږي د مرستې لپاره یې د سعودي په مشرۍ کې اتحاد جوړ شوی دی او په حوثیانو هوایي بریدونه کوي چې پکې ګڼ بې ګناه انسانان هم وژل کېږي ؛ بس په یمن کې ایران او سعودي د یو بل په مقابل کې د جنګ ډګر کې دي پدې سره د شیعه ګانو او سنیانو ترمنځ دښمني لا پسې زیاتېږي ؛ کورنی جنګ لا پسې اوږدېږي او بهرنو زبرځواکونو ته د مداخلو لار برابرېږي.

ددې لپاره چې مذهبي تعصبات نور زیات شي او هم د نړیوالو زبرځواکونو لپاره د مداخلې ټولې دروازې خلاصې شي نو د حوثیانو پرضد د سعودي په مشرۍ کې د جوړ شوي اتحاد له لورې که په روانو بمباریو کې بې ګناه یمنیان وژل کېږي او که د حوثیانو له لورې پرېې دفاع یمني مسلمانانو سخت ظلمونه کېږي نړیوال زبرځواکونه پرې سترګې پټوي او پرضد یې نه څه اواز پورته کوي او نه هم څه اقدام کوي.

د بشر د حقوقو نړیوالې ادارې هیومن رایټس واچ وایې چې حوثي وسلوالو له پیل نه تر ننه مرسته کونکې نړیوالې ادارې دې ته ندي پرېښې چې په جنګ کې محاصره شویو کوچنیانو ته په

سمه توګه غذايي مواد ورسوي او ورباندې يې تقسيم کړي چې له امله يې ډېرې سيمې دغذايي موادو درسد نه بې برخې پاتې شويدي.

د۲۰۱۷م کال دمئ مياشت کې دنړيوالو ادارو له لورې په خپرو شويو اعدادو او ارقامو کې راغلي وو چې دسختې ولګې او قحط سره مخامخ شويو سيموته دراستول شويو غذايي مواد ۲۳ سمندري جازونه او ۵۵۰ قافلې حوثي باغيانو لوټ کړيدي.

هېواد ته دراوړل شويو همدې غذايي موادو دلوټولو له امله دغذايي موادو راوردول ډېر کم شويدي چې په نتيجه کې يې دهېواد ۷۸ سلنه برخه دسختې قحطۍ سره مخامخ ده.

دملګرو ملتونو اداري دکوچنيانو دصحت څانګې ويلي دي چې ددې اداري له لورې دالحديده ښارکوچنيانو او لويانو ته ددوا رالېږلې شوې لارۍ په داسې حال کې حوثيانو لوټ کړي چې پدې ښار او نېږدې نورو سيمو کې خلک دهيضې په بيمارۍ اخته وو.

په يمن کې د w.H.O مشر په جينوا کې دوينا په ترڅ کې وويل چې ديمن په ۳۵ ولسواليو کې دهيضې بيماري خپره شويده او ۸ مليونه يمنيان ددې بيمارۍ دخطر سره مخامخ دي.

همدا راز د Savethe children نومې اداري له لورې په يو تازه خپور شوي راپور کې راغلي دي چې ديمن ۳ سوه زره کوچنيان دخوړو دکمي له امله دهيضې بيمارۍ دلوی ګواښ سره مخامخ دي؛دا په داسې حال کې ده چې ددې مرض له امله ۱۵۰۰کوچنيانو خپل ژوند له لاسه ورکړی او نېږدې يو مليون کوچنيان دسخت غذايي قلت ښکار دي.

د u.n.o له لورې په خپور شوي راپور کې راغلي دي چې د يمن ۲ مليونه او ۴ سوه زره او سېدونکي دطبي اسانتياوو دسخت قلت سره مخامخ دي.

دې اداري ويلي دي چې حوثي باغيانو دصنعاءيو روغتون ته دټوپک په زور ټول مريضان وويستل؛همدا راز يې دنجران يو روغتون په ډزو وويشت چې له امله يې دروغتون ټول مريضان دروغتون نه تېښتې ته اړشول.

دحوثيانو دحملو په نتيجه ديمن په مختلفو برخو کې ۲ زره ښوونځيو ته کوچنيان دتللو نه بند شويدي.

الحديد او ګورنري ښارونو کې حوثيانو زندانونه جوړ کړيدي چې دمخاليفينو په نوم پکې دسني مسلماناد سړو ترڅنګ ګڼې مسلمانې مېرمنې هم زنداني شويدي او دحوثي وسلوالو له لورې دسخت وحشت ښکار دي.

دنړيوالو ادارو له لورې په خپرو شويو راپورونو کې راغلي دي چې د ۲۰۱۷ م دجنورۍ نه تر دهمدې کال دمئ پورې حوثيانو د يمن د جلا جلا ولايتونو نه ۱۵۰۰ سني مسلمانان چې پکې ګڼ شمېر مېرمنې او کوچنيان هم شامل دي تښتولي او سخت يې سکنجه کړيدي.

دثبت شويو اعداو او ارقامو له مخې يوائې دبيضاء ولايت په زندانونو کې دحوثي وسلوالو دتشدد په نتيجه کې ۱۵۰ تنانو خپل ژوند له لاسه ورکړيدی؛دحوثيانو دهمدې تښتونو او تشدد له وېرې له ټولو هغو سيمو سني مسلمانان کډه شويدي په کومو کې چې سنيان دشمېر په لحاظ کم او دخپلې دفاع نه عاجز دي؛يوائې دتېرکال په ستمبر مياشت کې دالحور، الضباب او څو نورو سيمونه ۱۵ زره تنان دخپلو کورونو پرېښودلو ته اړ شويدي.

په تېرو کلونو کې دايتوپيا او صوماليا نه يمن ته راکډه شوي مهاجرين هم حوثيانو مسلح کړيدي اوپه زور يې دخپلو مخالفينو پرضد جنګوي چې د ۲۰۱۷ م په ستمبر کې حوثيانو هم پدې اعتراف کړی.

دحوثي وسلوالو ظلم يوائې ترسنيانو هم محدود ندی بلکې خپل شيعه ګان يې هم دظلم او وحشت نه په امن کې ندي پاتې؛دخپل واک لاندې ټولو سيمو نه په زور ځوانان جنګ ته راولي، له ځوانانو ترڅنګ کوچنيان هم

جنګ ته په زور راولي؛ دازادو منابعو له لوري دخپرو شویو راپورونو له مخې تراوسه حوثیانو د ۱۰ کلونو نه تر ۱۷ کلونو عمر لرونکي د ۱۰ زرو نه زیات کوچنیان په زور دجنګ ډګر ته راوستي دي چې ګڼ کوچنیان پکې وژل شوي هم دي.

همدا راز دخپل واک لاندې سیمو کې دغربیو کورنیو انجونې هم استخداموي؛ دصنعاء په جنوبي جانب کې واقع دذمار په نوم ولایت ته دغربیو کورنیو پېغلې راوستل کېږي او دلته ورته دایران، لبنان او عراق فوځي روزونکي استاذانې فوځي روزنه ورکوي او دفراغت نه پس یې حوثیان په فوځ کې استخداموي؛ درسنیو له لورې دخپرو شویو راپورونو له مخې تراوسه دحوثیانو له لورې ۵ سوه انجونو ته روزنه ورکړل شوې او په فوځ کې استخدام شویدي.

حوثي وحشیانو چې دمسلمانانو عزتونه ترپښو لاندې کړیدي نو ترڅنګ یې دالله تعالی دکوونو یانې جوماتونو تقدس هم ترپښو لاندې کړیدی؛ او دا کار یې همدا اسې روان ساتلی دی.

دبشر دحقوقو دنړیوالو ادارو له لورې په خپرو شویو راپورونو کې راغلي دي چې دیمن د ۲۲ ولایتونو پر ۱۳۰ جوماتونو او ۱۴۷ دیني مرکزونو حوثیانو بریدونه کړیدي او ورته یې زیات تاوان وررسولی دی؛ ۸۰ جوماتونو ته یې بمونه اینبي او وران کړي یې دي؛ ۴۱ جوماتونو ته یې دورانولو په اراده بمونه اینبي دي خو پر ورانولو یې ندي توانېدلي البته شدید تاوان یې ورته وررسولی دی.

۱۲ دارالحفاظونه یې هم وران کړیدي او ۱۵۷ جوماتونه یې دخپلو وسلوالو لپاره په فوځي مرکزونو بدل کړیدي.

خو دیمن دارشاد او اوقافو وزیر دوکتور عطیه احمد دا شمېره زیاته ښايي او وایې چې حوثي وسلوالو تراوسه دمسلمانانو ۳ زره جوماتونه قبضه کړیدي او په فوځي مرکزونو او ډیپوګانو یې بدل کړیدي.

په یمن کې دبشر دحقوقو مسئول محمد عسکر رسنیو ته ویلي دي چې حوثي وسلوالو تراوسه ۲ سوه امامان او واعظین دنیولو نه پس سخت سکنجه کړیدي چې ډېرو یې خپل ژوند هم له لاسه ورکړیدی.

دحوثیانو مشر عبدالمالک حوثي تېرې روژې کې دیمن دټولو امامانو پرنوم یو اعلامیه خپره کړې وه چې پکې یې ټول امامان دتراوو نه منع کړي وو.

دیمن دحج او عمرې وزارت مرستیال نړیوالو رسنیو ته ویلي چې تېر کال حج ته تلونکي په زرونو مسلمانان حوثیانو دحج نه منع کړل او دڅه دپاسه ۲ زرو تنانو نه یې پاسپورټونه هم اخستي دي.

دسعودي عربستان په مشرۍ کې داتحادي فوځ او دیمن ددولت دفوځ دپرمختګ دمخنیوي په موخه حوثي ملېشو دیمن په مختلفو سیمو کې ۲،۵ سوه زره ماینونه ځای پرځای کړیدي چې تراوسه ترې په سونو یمنیانو خپل ژوند له لاسه ورکړیدی.

اتحادي فوځونو اعلان کړیدی چې تراوسه یې ۳۲ زره ماینونه ویستلي او خنثی کړیدي.

حوثي وسلوالو تراوسه ۸۵ توغندي پرسعودي ویشتلي دي چې د ۲۰۱۷ م په اکتوبر میاشت کې یې په مکې مکرمې هم توغندي فایر کړي و.

دملګرو ملتونو ځانګړې استازې جمال بن عمر هم وایې چې دیمن دامن لپاره دملګرو ملتونو په امنیت شورۍ کې په منظور شوي ۲۲۱۲ یم پریکړه لیک باندې تراوسه حوثیانو عمل ندی کړی او هرځل رامنځته شوی اوربند هم همدوئ مات کړی.

دمظلومو یمنیانو پرضد روان داټول وحشت دنړۍ سترګواکونه ګوري خو پرضد یې څکه هیڅ هم نه کوي چې همدا ددوئ غوښتنه ده او په همدې کې یې شوم اهداف نغښتي دي.

# د شیـشو اوښـان ورو ولــه



انس رضي الله عنه وایي: رسول الله ﷺ په یوه سـفر روان و، یو تور غلام یې چې انجشـه نومیـدی د اوښـانو بیولـو ځـانګړی اواز ویلې، رسـول الله ﷺ هغـه تـه وفرمایـل: اې انجشـه! د شیشـو (میرمنو) اوښان ورو وله. عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَـانَ رَسُـولُ اللَّهِ صَـلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ وَغُـلَامٌ أَسْـوَدُ يُقَـالُ لَـهُ أَنْجَشَـةُ يَحْـدُو فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّمَ يَـا أَنْجَشَـةُ رُوَيْـدَكَ سَـوْقًا بِالْقَوَارِيرِ. رواه مسلم

انجشه د اوښانو بیولو ښایسته اواز لاره او اوښان چې د تګ پـه مهال ښایسته اواز اوري نو تګ تېزوي. میرمني لکـه شیشـې نـازکې دي، د اوښانو په تېز تګ سره هغوی تکلیـف کیـږي. نـو رسـول الله صلی الله علیه وسلم ځکه انجشه غلام تـه وویـل چـې اوښـان ورو وله. شرح النووي.

دا مهـال د نـړۍ مختلفـو قومونـو ښـځو تـه عجیـب سـپک او بېخونده القـاب کـارول، آن د یونـان هوښـیاران! هـم د مېرمنـو لـه سپکاوي مستثنی نه وو، خو د انسانیت عظیم لارښـود ﷺ مېرمنـي ته د (شیشې) نازک او پاموړ لقب ورکړ او پر انسانیت یې دا عادلانه غـږ وکـړ چـې مېـرمن لکـه شیشـه داسـې سـپېڅلې او رڼـه ده او همدومره اتیات، نرمي او لطیف چلند ته اړتیا لـري. اې انجشـه! د شیشو (میرمنو) اوښان ورو وله. يَا أَنْجَشَةُ رُوَيْدَكَ سَوْقًا بِالْقَوَارِيرِ.

Srak Magazine

### د امريکايي ډيپلوماټ [بارنټ] ليک ته



## د اسلامي امارت د وياند ذبيح الله مجاهد ځواب ليک:

ښاغلي بارنټ روبين!

ستاسو ځواب مو ولوست، مننه کوو چې موږته مو د ځواب ويلو هڅه کړې.

خو ځو اساسي ټکي درڅخه هير شوي دي

* که چيرې ستاسو هيواد (متحده ايالات) موږ اشغال کړی وای، د ځمکې او هوا اختيارات مو درڅخه اخيستی وای او په ورځ کې مو ګڼ شمير امريکايان په خپلو کورونو کې په خوب ويده وژلی ممکن چې بيا به ستا دريځ او نظر دغسې نه وای لکه نن، نو هيله ده چې واقع بين ووسئ.

* زموږ هيواد اشغال شوی، د اشغال په ترڅ کې يو تش په نوم افغان امريکايي ډوله نظام پر موږ تپل شوی او تاسو وايې چې بايد له هغو سره خبرې وکړو او په رسميت يې ومنو عين هغه خبره چې امريکايان يې د جګړې د ګټلو لپاره په نظر کې لري.

تاسو ويلي چې موږ په فدايي بريدونو کې ستاسو په ګمان عام خلک وژنو، لومړی خو دا خبره د مکث وړ ده، لويه جګړه روانه ده، اکثره ملکيان ستاسو د ځواکونو په عملياتو او بمبارونو کې وژل کيږي، او که ومنو چې زموږ په عملياتو کې هم خلکوته زيان اوړي نو تاسو ووايئ چې داسې بريدونو ته موږ څه شي اړ کړي يو؟ ستاسو به دا هم ياد وي چې موږ د شوروي اتحاد څخه د آزادۍ د ترلاسه کولو لپاره يونيم ميليون افغانان له لاسه ورکړل، خو دا هرڅه مو د يو لوی هدف لپاره وزغمل چې هغه د اشغال څخه د آزادۍ نعمت وو.

* تاسو وايي چې فرصتونه له لاسه مه ورکوئ، موږ فرصتونه له لاسه نه دي ورکړي خو دسيسو ته فرصت نشو ويلی، د کابل دجريان په نامه غونډه او نورې ورته هڅې له اسلامي امارت څخه د تسليمۍ غوښتنه کوي په داسې حال کې چې اسلامي امارت بې له شکه داسې قدرت دی چې امريکا غوندې نړيوال استکباري قوت يې له خپلو ټولو متحدينو او دار او دستې سره ماته کړی، آيا ستاسو منطق دا خبره سمه ګڼي؟

* تاسو ويلي چې د کابل حکومت بايد ومنل شي ځکه ټولې نړۍ منلی !!!؟

په ۲۰۰۱ کال کې ټولې نړۍ زموږ پر ملک باندې امريکايي تجاوز هم پرځای کار باله حمايت يې ورڅخه کاوه او منلی وو نو آيا موږ هم بايد اشغال منلی وای؟

په افغانستان باندې د پخواني شوروي اتحاد د يرغل په مهال هم د ملګروملتونو د سازمان په ګډون د نړۍ مطلق اکثريت هيوادنو د هغه وخت د کابل حکومت منلی وو او په رسميت يې پيژاند، آيا دا سمه ده چې هغه مهال افغان مبارزينو هم بايد همدا کار کړی وای؟

* اساسي خبره داده چې ممکن ټوله نړۍ له امريکا څخه ويره ولري، خو موږ له امريکا څخه ويره نه لرو، موږ د امريکا هرڅه وزن کړي، موږ د هغوی سره په جګړه کې ډير څه زده کړي، امريکا هغه هيواد نه دی چې بايد په نورو هيوادونو کې د حکومت نوعی او بڼې وټاکي، که تاسو همداسې يوه نظريه لرئ، دا به ځکه وي چې تاسو يو امريکايي ياست، کنه هيڅ آزاد انسان داسې جسارت او مداخلو ته اجازه نشي ورکولای.

د خبرې جرړه داده چې د امريکا اساسي ستونزه څه ده، آيا ريښتيا هم تروريزم؟

که نه د افغانستان د معادنو استخراج، دلته د خپل ماډل نظام تپل، د اسلامي حکومت مخنيو او له دې ځايه په سيمه کې خپل استعماري سياستونه پلی کول؟

که لومړی مسئله وي موږ يې د حل لپاره په پوره صداقت ژمن يو موږ د هيچا په چارو کې مداخله نه لرو او نه هم د امريکا په ګډون له کوم هيواد سره دښمني غواړو. امريکايي حکومت، ولس او پارلمان ته مو مکرر ليکونه استول هم په دې منظور وو چې دغه پيغام ورسوو.

او که دوهمه خبره وي، بيا نو دا ملت داسې نه دی لکه نور هغه ملتونه چې امريکا همدا اوس لاندې کړي، ګټې يې خوري، استعماري اهداف په کې تعقيبوي او مخامخ د هغو په کورنيو چارو کې مداخله کوي، په داسې صورت کې موږ د امريکا هيڅ پروا نه لرو، نه خبرې ورسره کوو، نه جګړه دروو او نه هم ورڅخه ستړي کيږو، بيا تاسو امريکا يي کارپوهان او څيړونکي د زيانونو شمير ونيسي چې څوک ډير زيانمن کيږي او څوک جګړه بايلي؟

مننه